# پښتو لیک لار

## (باره کلی)

پروفیسر سید تقویم الحق کاکا خیل
پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

ترتیب ،تدوین او سمونه
ډاکټر محمد جاوید خلیل

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

# پښتو لیک لار

( باړه ګلی )


پروفیسر سید تقویم الحق کاکاخیل

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک


ترتیب ، تدوین او سمونه

ډاکټر محمد جاوید خلیل


پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي

د پښتو اکېډیمی د مطبوعاتو سلسله نمبر ۲۴۹

د کتاب نوم ـــــ پښتو لیک لار ( باړه ګلی )
وړومبے چاپ ـــــ ۱۹۹۱ء
دوېم چاپ ـــــ ۲۰۱۱ء
شمېر ـــــ ۵۰۰
کمپوزر ـــــ ارشاد خان ( پښتواکېډيمي )
بیعه ـــــ ۹۰ روپۍ
خوروونکي ـــــ پښتو اکېډیمي پېښور يونيورستي
د چاپ ځاے ـــــ جدون پرنټنګ پرېس پېښور

د ډاکټرمحمد جاوېد خلیل په اهتمام په جدون پرنټنګ پرېس پېښور کښې چاپ شو او د پښتو اکېډیمی پېښور یونیورستی نه خور شو۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

د جولائي ۱۹۹۰ء کال د لسمي نه تر دولسمي نېټې د پښتو رسم الخط په باب له يو تاريخي سيمپوزيم د صوبائي حکومت په تعاون د پښتو اکېډيمی پېښور يونيورسټی د اهتمام لاندې په باړه ګلی هزاره کښې منعقد کړے شو - په دې مرکه کښې د کوزې او برې پښتونخوا يو سل پنځۀ د پرشو د سر سر پوهانو، شخصيتونو د لسانياتو ماهرينو، اديبانو د ابلاغ سر منشيانو، شاعرانو او کاتبانو ګډون اوکړو -

د مرکې مندوبينو ته د پښتو د روانو رسم الخطونو د مخه د راولاړو شوو کشالو تفصيل په ګوته کړے شو او دا خواست ورته وکړے شو چې په متفقه ډول د دغې مسائلو د حل کولو او د پښتو د ليک دود دپاره د يو مشترکه رسم الخط وضع کولو تابيا اوکړي -

د مسائلو د تعين نه پس په دې باندې تر درې ورځو بنۀ تفصيلي او دوه اړخيز بحثونه اوشول - دغه شان د هرې مسئلې ممکن حل په ګوته کړے شو او په اخر کښې هغه تاريخي فيصلې پوره په اتفاق سره وکړے شوې کومې چې د پښتو د مشترک رسم الخط د وضع کولو دپاره ومنلے شوې - ددې

فېصلو د مخه هغه ګڼ رسم الخطونه چې نه يوائې په صوبه سرحد او بلوچستان کښې ئې رواج موندے ؤ ، د مېنځه لاړل بلکې د افغانستان د مروج رسم الخط سره هم تر ډېره حده پکښې يو شان والے پېدا کړے شو - ددې حتمي فائده د يو بېن المللي رسم الخط په شکل کښې څرګنده شوه او د پښتو د ليک دود مېدان ئې د اباسين نه تر امو دريابه پورې يو کړو - دا يقيناً چې يوه ډېره اهمه او تاريخي فېصله ده چې نتائج به ئې ډېر دور رس او اهم وي -

زهٔ د ټول پښتون وګړي او بيا خاص کر د لوستې طبقې نه دا طمع لرم چې په يو اتفاق به من و عن د پښتون اولس د اتحاد او يووالي په خاطر دا فېصلې قبولې کړي او هم نن نه به په نوي رسم الخط ( املا ) کښې ليک شروع کړي -

زهٔ په دې موقع د صوبه سرحد د وزارت تعليم باالخصوص دتعليماتو د وزارت د سکترښاغلي محمود خان، د پېښور يونيورستۍ د محترم وائس چانسلر ډاکټر محمد انور خان او د پښتو اکيډيمۍ د تحقيقاتو د څانګې مشر ډاکټر راج ولي شاه خټک او د خپلو نورو ټولو ملګرو ډېر ممنون يم چې هغوي په دې مرکه کښې په مالي ، انتظامي او تکنيکي جوړ له پوره پوره دلچسپي واخسته او زمونږ دا دروند او تاريخي کار ئې د کاميابۍ تر غاړې ورسولو -

زۀ د مرکې د ټولو مندوبينو بالخصوص د افغانستان او بلوچستان نه د راغلو پوهانو او عالمانو هم تشکر کوم چې هغوي ډېر په مينه او سپېځلي جذبه زمونږ په دعوت په دې مرکه کښې شرکت وکړو۔ زۀ د ښاغلي پروفېسر سيد تقويم الحق کاکاخېل ، د دروند ليکوال او محقق ښاغلي حبيب الله رفيع ، د ستر محقق ښاغلي ډاکټر گل جان ورور او د ډاکټر شېرزمان طائزي هم مننه کوم چې هغوي د رسم الخط په حقله د فېصلو په مرتب کولو او د مرکې په اخر کښې د قرار دادونو په وړاندې کولو کښې زمونږ سره هر قسم عملي کومک وکړو۔

زۀ يو ځلې بيا د خپلو ټولو ملگرو په ډېر اخلاص مننه کوم او دعا کوم چې الله تعالى دې زمونږ دا کاوش د پښتون وگړي او پښتو ژبې د نېک مرغۍ پېش خېمه کړي۔ آمين

پروفېسر محمد نواز طائر
ډائرېکټر پښتو اکېډيمي

# پښتو ليک لار

( ۱ )

پښتو ډېره زړه ژبه ده ـ د دې د ويونکو او وئيلو تاريخ تر ډېره لرې رسي خو د ليک معلوم تاريخ ئې ډېر اوسنے دے ـ دا په يقين سره نۀ ده معلومه چې د اسلام نه مخکښې پښتو څنګه ليکلے شوه ـ ځنه پوهانو په خروشتي ليک دود کښې د پښتو ټکي موندلي دي او شايد چې څۀ وخته پورې ئې دغه ليک دود پاتې شوے وي ـ البته دا يقيني ده چې دې سيمې ته د اسلام رارسېدو نه پس پښتو عربي رسم الخط خپل کړے دے او تر نن ئې هم دغه رسم الخط ساتلے دے ـ

يو روايت را روان دے چې پښتو رسم الخط سره د پښتو د مخصوصو تورو د سلطان محمود غزنوي په زمانه د هغۀ يو وزير رائج کړے ؤ ـ کېدے شي چې هغۀ د پښتو ليک عربي رسم الخط ته را اړولے وي خو ددې خبرې څۀ مضبوط ثبوت نشته او تر زرمې صدۍ هجرۍ پورې د يو واضح لينک دود متعلق په يقين سره څۀ معلوم نۀ دي ـ

د بایزید انصاري خیرالبیان تر اوسه پورې د پښتو ژبې وړمبے مکمل کتاب گڼلے شي - په دې کتاب کښې هغهٔ د نورو دعوؤ سره یوه دعوه دا هم کړې ده چې د پښتو لیک دود ماته خدا ے پاک د الهام په ذریعه ښئیلے د ے - ددې نه معلومیږي چې د هغهٔ تر وخته د پښتو څهٔ متفقه او منظم لیک دود نهٔ ؤ - خصوصاً د پښتو د مخصوصو تورو -

د عربی تورې د پښتو په لیک دود کښې د شروع نه په خپل عربي شکل کښې شامل راغلي دي - دې سره هیڅا څهٔ اختلاف نهٔ د ے کړے - دا په عربی کښې د یرش توري دي - خو د ,,لا ،، یا لا تورے اوس څان ته بیل تورے نهٔ شي گڼلے - باقي نههٔ ویشت توري دا دي -

ا - ب - ت - ث - ج - ح - خ - د - ذ - ر - ز - س - ش - ص - ض - ط - ظ - ع - غ - ف - ق - ک - ل - م - ن - و - ہ - ء - ي

د تورو لیکلے شکل اصل کښې د هغه اواز علامت وي کومه ژبه کښې چې اوازونه وي - د هغوي لیکلي توري زیات وي - په فارسی کښې د عربی نه څلور اوازه زیات دي - پ ، چ، ژ ، گ - په نورو آریائي ژبو کښې ددې نه هم درې اوازه زیات دي - ٹ، ڈ، ڑ په پښتو کښې دا اووهٔ زیاتي اوازونه هم شته او ددې نه علاوه څلور د پښتو خاص اوازونه هم دي چې مونږ ئې اوس په څ - ځ - ږ - ښ لیکو - دې اوازونو ته شکل ورکول د

پښتو د ليک دود خپل ضرورت ؤ ـ چې د بل نه په پور اختسو نۀ پوره کېدو ـ

( ۲ )

په دې سلسله کښې اول کوشش بايزيد انصاري کړے دے او د الله په حکم ئې ( د هغۀ د وېنا مطابق ) دې تورو ته شکلونه ورکړي دي ـ په عربي فارسي کښې د تورو فرق په نقطو ؤ ـ هغۀ هم دغه طريقه استعمال کړه ـ البته کوم توري چې عربي فارسي کښې نۀ وو او په نقطو ئې فرق نۀ شو کېدے ـ هغو ته ئې د علاماتي تورو په ځاے کونډې خوښې کړې ـ او ددې يوؤلسو تورو دپاره ئې دا شکلونه متعين کړي دي ـ

ا ـ ب ـ پ ـ ت ـ ټ ـ ث ـ ج ـ چ ـ ځ ـ ح ـ خ ـ د ـ ډ ـ ۮ ( اوسنے ځ ) ذ ـ د ( اوسنی ږ ) ر ـ ړ ـ ز ـ ږ ( فارسي ژ ) س ـ ش ـ ښ ـ ع ـ غ ـ ف ـ ق ـ ک ـ ګ ـ ل ـ م ـ ن ـ ڼ ـ و ـ ه ـ لا ـ ی

بايزيد انصاري د ډاکټر اختر خان مرحوم د تحقيق مطابق خيرالبيان د کال ۹۲۸ھ خواؤ شا ليکلے دے ـ ګويا تر دې کاله د پښتو د مخصوصو اوازونو دپاره څۀ منلي شوي علامات نۀ وو ـ دا د بايزيد انصاري د غير معمولي ذهانت نخښه ده ـ چې هغه د پښتو د ټولو لهجو اوازونه په نظر کښې ساتلي دي ـ کوم چې وروستو اخوند درويزه بلکې د خوشحال خان غونډې همه جهت عبقري هم په نظر کښې ونۀ ساتل ـ

بایزید انصاري د فارسي ,, ژ ،، هم په مخصوصو اوازونو کښې شمېرلې ده ـ د مروتو په علاقه اوس هم د ,,ژ،، اواز د فارسي ,, ژ ،، نه مختلف دے ـ ممکنه ده چې هغه وخت په وزیرو کښې هم دا اواز د فارسي ,, ژ ،، نه مختلف ؤ ـ د ,, نړ ،، مرکب لفظ لکه کونړ او رنړا اصل کښې مفرد ښکاري او ډېر عام لفظ دے ـ بایزید ,, ڼ ،، په حروف تهجي کښې بیل لیکلے دے ـ

د خیرالبیان د تصنیف نه کافي موده پس د کال ۱۰۱۲ هـ او کال ۱۰۲۱ هـ تر میانځه د اخوند درویزه مخزن الاسلام ولیکلے شو ـ دې کتاب ته الله تعالی دومره مقبولیت ورکړو چې په لږه موده کښې د پښتونخوا ګوټ ګوټ ته ورسېدو ـ اخوند درویزه د بایزید انصاري په لیک دود کښې څۀ ترمیمات وکړل ـ

د ډ په ځاے ډ

د ږ په ځائے ژ

ډ او ڼ ئې د حروف تهجي نه وویستل ـ د ډ (ځ) په ځاے ئې هم څ استعمال کړو ـ

د اخوند درویزه دا رسم الخط په لږ فرق زمونږ تر زمانې راورسېدو ـ البته تر دا میانځه خوشحال خان ختک یو بل رسم الخط اختیار کړے دے ـ دا نۀ معلومېږي چې ولې ؟ هغه ډ ارزاني ، واصل ، مرزا خان ذکر کوي او دا دیوانونه یقیناً هغۀ

ته ور رسېدلي دي ـ دا ديوانونه به د بايزيد په رسم الخط کښې ليک وو او هغه رسم الخط به د خوشحال بابا نۀ وي خوښ شوے ـ د اخوند درويزه مخزن هغۀ ته د سوات په سفر کښې په لاس ورغلے ؤ او دا ډېره روستنۍ خبره ده ـ

دا رسم الخط مونږ ته اول ځل د دستارنامې د يو نسخې نه په لاس راغلے دے ـ چې عبدالحليم کاتب په ۱۱۱۹ھ کښې د افضل خان دپاره ليکلې ده ـ د کليات خوشحال يوه نسخه چې محمد سعيد کاتب په ۱۱۷۳ھ کښې ليکلې ده ـ هم په دغه رسم الخط کښې ده ـ دا کاتب د اکوړي دے ـ ګويا دا ليک دود د خوشحال خان په خاندان کښې تر څۀ مودې چلېدلے دے ـ

خوشحال خان د پښتو مخصوص اوازونه صرف دوه راخستي دي ـ ځ او څ ـ ځ ته د ح په مېنځ کښې دوه ټکي او يو همزه علامه ورکړې ده ـ او داسې ئې ليکلے دے ج او ځ دپاره يې د جيم د ټکي د لاندې همزه ليکلے دے ـ او داسې شکل ئې جوړ شوے دے ـ ,,ج ،، ږ او ښ هغۀ په ژ او ش ليکلي دي ـ څنګه چې د ختکو لهجه ده ـ حروف تهجي د هغۀ په مخصوصو شکلونو کښې داسې دي ـ

ا ـ ب ـ ت ـ ط ـ ث ـ ج ـ چ ـ ج ـ ج ـ خ ـ د ـ د ـ ذ ـ ر ـ ز ـ ر ـ س ـ ش ـ الخ

د خوشحال خان ليک دود د اخوند درويزه نه اندازةً شپېتۀ کاله وروستو شروع شوے دے ۔مخزن د يو درسي کتاب حېثيت لرلو ۔چې هر ځاے لوستلے او لولولے شو ۔چې خوشحال خان خپل علمي کتابونه ليکل نو دې ليک دود جرړې پخې کړې وې او دې بل ليک دود ځاے ونۀ نيوے شو۔ او د اخوند درويزه بابا ترميم شوے د بايزيد انصاري ليک دود په ځاے پاتې شو۔

دا ليک دود بيا کاتبانو په خپله رضا رنګ رنګ ليکلو۔په نسخ کښې هم او په نستعليق کښې هم۔چا د پښتو د مخصوصو حروفو خيال ساتلے دے چا نۀ دے ساتلے۔چا د لاندې غړوندي په ځاے بره ط ليکلې ده چا همزه۔چا پکښې لاندې ط او همزه هم استعمال کړي دي ۔خو په مجموعي حېثيت ليک دود يو پاتې شوے دے۔

په نولسمه صدی هجري کښې چې مستشرقين پښتو ته متوجه کېدل نو د ليک دود ساخت موجود ؤ۔البته ځاے په ځاے کنډ کپر شوے ؤ۔هغوي په تولهٔ مسئله غور وکړو او يو معياري ليک دود ئې تيار کړو ۔په هغې کښې ئې کتابونه هم وليکل ۔د چاپ دپاره ئې د هغې ټائپ هم تيار کړو ۔او صحيح رنګيز ښائسته کتابونه ئې هم چاپ کړل۔تر دې وخته د پښتو مخصوص اوازونه ، د اوازونو په حېثيت ورک شوي وو يا چرته لرې قبيلو کښې پاتې وو ۔البته دې مخصوصو

اوازونو په مختلفو قبيلو کښې بيل بيل ارتقائي صورت اختيار کړے ؤ - ددې اختلافاتو تحريري شکل يو ساتلو دپاره هم د مخصوصو تورو ضرورت ؤ او دا مخصوص توري د پښتو رسم الخط د اهم جزو په طور باقي وساتلے شول -

( ۳ )

تر هغه وخته ضرورت په دغه هومره رسم الخط پوره کيدو او پوره شو - د تلفظ دپاره مستشرقينو رومن خط استعمالولو - نو هغوي ته د حروف علت د مختلفو اوازونو اشکال پېښ نۀ شو او پښتنو خپل ليک په خولۀ کښې جوړولے شو - ورو ورو داسې وخت راغلو چې پښتنو نورو ته پښتو ښئيل شروع کړه او د نورو دپاره ئې په پښتو ليکل شروع وکړه او دا ورته محسوسه شوه چې موجوده تورې زمونږ ضرورتونه نۀ پوره کوي داسې پښتو ليکونکوته د نوروعلاماتوهم ضرورت دے -

په پښتو کښې د عربي ضمې ، فتحې او کسرې (پېش زور او زېر ) نه علاوه ددې اوازونو اختصار هم رائج دے چې مونږ ورته پېشکے ، زورکے ، زېرکے وئيلے شو - دا اوازونه د عربي پېش زور او زېر نه مختصر دي - او په خالصو پښتو تورو کښې يا پښتو شوي عربي فارسي تورو کښې استعمالېږي - لکه سور ، نول -

دغسې پښتو کښې د توري آخر ,, ه ،، په دوه قسمه ده سخته او نرمه لکه زړۀ او زړه - ,, نه زړۀ مې زړه کوتې نۀ

مني ، ، دې جمله کښې دوه ځله ,, نه ، ، د ے او دوه ځله زړه ـ د دواړو تلفظ یو بل نه بدل د ے ـ د ,, ی ، ، مسئله ددې نه هم ګرانه ده ـ یو پرته ,, ے ، ، ده لکه سړے ، یو غونډه ی ده لکه سړي ـ یو د تانیث ی ده لکه جینۍ یو د فعل په آخر کښې ی ده ـ لکه وکړئ ـ او یو د پښتو مخصوصه ی ده ـ لکه سړې اوبهٔ ـ ددې یې ګانو تلفظ د یو بل نه کافي جدا د ے ـ خو عام رسم الخط کښې صرف دوه یې ګانې لیکلے شي ـ یا ئې معروف او یا ئې مجهول ـ

چې پښتنو په پښتو کښې علمي لیکنې شروع کړې نو ددې فرقونو ضرورت محسوس شو ـ بیا چې غېر ملکیانو ته ئې ښئیل شروع کړل نو دا ضرورت نور هم زیات شو ـ دې ورځو کښې زمونږ په علاقه پښتو ته حکومتي سرپرستي حاصله نهٔ وه ـ او هر چا په خپل طبیعت ځان ته علامات وضع کول ـ چې پښتو اکېډیمي جوړه شوه نو مولانا عبدالقادر مرحوم په علمي سطح ددې مسئلو حل ته توجه وکړه ـ

په یو دېرشم مارچ ۱۹۵۷ ء په پښتو اکېډیمۍ کښې د هغوي د اهتمام لاندې یوه لویه غونډه وشوه ـ چې هغې کښې د افغانستان لو ے لیکونکي خادم صاحب ، رښتین صاحب او د هغوي ملګري د صوبه سرحد د لویو لیکوالو دوست محمد خان کامل مرحوم ، قاضي احمد سعید مرحوم ، مولانا عبدالقادر مرحوم ، عبدالخالق خلیق مرحوم ، پروفیسر نور

احمد خان مرحوم ، ډاکټر منور خان ، اجمل خټک ، حکيم محمد اسلم سنجري مرحوم ، نصرالله خان نصر ، ماسټر عبدالکريم مرحوم ، ارباب سکندر خان مرحوم ، مولانا عبدالقدوس مرحوم ، ډاکټر انوارالحق مرحوم ، خيال بخاري مرحوم او د هغوي نورو ملګرو سره يو ځاے کښېناستل او ددې مسئلو تحليل ئې وکړو -دا تحليل په خپل ځاے ډېر جامع دے۔او تقريباً ټولې مسئلې پکښې راخستے شوي دي۔ په دې کښې څۀ فېصلې متفقه وشوې او د څۀ مسئلو ئې دوه حله تجويز کړل۔او فېصله ئې قام ته پرېښوده۔

دا يو ډېر صحيح قدم ؤ -او پکار وه دا فېصلې د يو معياري ليک دود په شکل کښې هر چا لوستې او هر چا منلې وې -ددې نه زياته نمائنده اجتماع نۀ بيا کېدے شوه او نۀ وشوه خو متأسفانه خپله د پښتو اکېډيمۍ ددې فېصلو نافذ کولو او خلقو ته د رسولو اهتمام ونۀ کړو او ليک دود هم هغسې د کاتبانو په خوښه پاتې شو۔

په کال ۱۹۸۴ء کښې د صوبه سرحد د تعليم محکمې دوه اهمې ادارې جوړې کړې۔يو د پښتو لغت اداره او بله په پرائمري سطح د پښتو ذريعه تعليم کولو اداره۔دا دواړه ادارې د پښتو ليک دود د مسئلې سره مخامخ شوې او ضرورت ئې محسوس کړو چې په حکومتي سطح ددې مسئلې يو حل راپيدا کړے شي۔چې د ماشومانو دپاره درسي کتابونه او قام

دپاره پښتو لغت په يو معياري ليک دود کښې وليکلے شي او ټول التباسات تر ميانځه ووځي۔

په دې سلسله کښې په ديارلسم اګست ۱۹۸۴ء د محکمه تعليم د سکرټري محمد اعظم خان د صدارت لاندې يوه غونډه وشوه ۔په دې غونډه کښې د پښتو اکيډيمی او پښتو ډيپارټمنټ پېښور يونيورسټی محکمه تعليم صوبه سرحد او د ټيکسټ بُک بورډ د صوبه سرحد نمائندګانو او لويو اديبانو ، عالمانو شرکت اوکړو ۔دا متفقه فېصله وشوه چې د ۱۵ اپرېل کال ۱۹۵۷ء فېصلو مطابق دې درسي کتابونه په يو معياري ليک دود کښې وليکلے شي ۔البته د پښتو لغت مخصوص ضروريات دې تر لغته محدود وساتلے شي چې لغت بازار ته راشي او عام شي نو بيا د هغې په رڼا کښې د املا بدلولو لاړې چا بندې کړې نۀ دي ۔په دې فېصله کښې بيا هم دا نيمګړتيا پاتې شوه ۔چې د کال ۱۹۵۷ء غونډې د کومو مسئلو دوه حله تجويز کړي وو هغو کښې يو حل خوښ نۀ کړے شو ۔دا مسئله د لغت ادارې او د درسي کتابونو ادارې خپلو کښې په مشوره حل کړه۔

دا معياري رسم الخط تر هغه ادارو محدود پاتې شو، کومو چې دا فېصله کړې وه ۔شپږ کاله کښې ابتدائي درسي کتابونه خو دې ليک دود ته را واوړېدل ۔د نور پښتونخوا اديبانو شاعرانو او عالمانو دې طرف ته توجه ونۀ کړه ۔او هغه

عام لیک دود جاري پاتې شو . ددې خبرې ضرورت ؤ چې په جمع ټول پښتانهٔ ، ټول پښتو لیکونکي او ټول اخبارونه رسالې یو لیک دود خپل کړي . دې ضرورت ته د پښتو اکیډیمی ډائریکټر پروفیسر محمد نواز طائر صاحب توجه وکړه . او د محکمه تعلیم صوبه سرحد په مالي مرسته او ډاډ ګیرنه ئې په بارہ گلی ( پېښور یونیورسټی ) کښې یو بېن المللي سېمپوزیم راغونډ کړو . دا یو لویه نمائنده جرګه وه . عالمان، ادیبان ، شاعران ، استاذان ، طالب علمان ، خطاطان او صحافیان د هرې طبقې نه ئې منلې شوي کسان راغوښتي وو او اکثر راغلي وو . د جولائي ۱۹۹۰ء د لسم تاریخ نه تر دولسم تاریخه دې نمائنده ملي جرګې د لیک دود په ورو لویو مسئلو په یخ ماحول کښې په سره سینه غور وکړو او متفقه فېصلې ئې وکړې . دې جرګه کښې د افغانستان منلې شوي فاضلان او د بلوچستان لوے عالمان هم وو او داسې دا فېصلې د ټولو پښتنو فېصلې شوې .

(۴)

دې کښې څهٔ فېصلې خو مختصرې او پوهې ته اسانې دي او ځنه فېصلې به لږ بحث غواړي . دا فېصلې د ضمیمې په طور آخر کښې شاملې کړے شوي دي . دلته مونږ هغه ترتیب لږ غوندې بدلوو . مختصرې فېصلې رامخکښې کوؤ او په اوږدو فېصلو لږ غوندې بحث کوؤ .

۱. کوم الفاظ چې پښتو د عربۍ يا فارسۍ نه راخستي دي او معنٰی يا شکل ئې نۀ دے بدل شوے. هغه به په اصلي شکل کښې ليکلے شي. لکه ظالم، قهر او عدل به زالم، کهر او ادل نۀ شي ليکلے.

۲. هغه عربي يا فارسي الفاظ چې پښتو خپل کړي دي او شکل يا معنٰی ئې بدله شوې ده. هغه به هغسې ليکلے شي څنګه چې پښتو کښې وئيلے شي. لکه تپوس چې شائد ,, تفحص ،، ؤ. خو پښتو کښې ئې معنٰی بدله شوې ده. يا وخت چې شکل ئې بدل شوے دے.

۳. د عربۍ مخصوص توري لکه ث، ح، ذ، ص، ض، ع، ف، ق به يوازې په عربۍ کلمو کښې راځي. او پښتو کلمو کښې به ئې نۀ ليکو. لکه تورخم به طورخم يا تور خان به طور خان نۀ شي ليکلے.

۴. ,, ڼ ،، به ځانته تورے ګڼلے شي. د ,, ن ،، نه پس به الف بائ ترتيب کښې ځاے نيسي او نوم به ئې ,,نوڼ ،، وي. دا تورے چې بايزيد انصاري راؤړے دے په افغانستان او بلوچستان کښې دغسې استعماليږي. ,,کوڼ او رڼا ،، به کوڼ او رڼا ليکلے شي.

۵. د کومو کلمو په اخر کښې چې زوَر وي هغه به په پسته ,,ه ،، ليکو. لکه ,, وروره ! خوشحاله اوسې ،، دا ,,ه ،،

به د زوَر علامت ګڼلے شي د تانيث علامت به نۀ شي ګڼلے۔

۶. مد ( ~ ) په پښتو کښې نشته، البته د نورو ژبو نه اخستې شوي ټکو کښې به هم هغسې ليکلے شي لکه آخر ، آمد۔

۷. سخته ,, ه ،، لکه زړۀ ( دل ) کښې به د ,, ه ،، دپاسه همزه ليکلے شي ۔او پسته ,, ه ،، لکه زَړه (د نوي ضد ) به بې همزه ليکلے شي۔ مثلاً : زړۀ مې زړه کوټې نۀ منې دا علامه په صوبه سرحد کښې پخوا راسې هم دغسې استعماليده۔

۸. ګ په صوبه سرحد کښې د کاف د شوشې په کونړه ليکلے کيږي ۔خو په افغانستان کښې ئې څنه خلق ګ ليکي۔اوس به متفقه ,, ګ ،، ليکلے کيږي۔

۹. ,, کښې ،، د پښتونَخوا په يو لويه علاقه کښې د شين په اظهار وئيلے شي ۔په داسې کلمو کښې لکه کښېناستل ، بخښنه ، نخښه کښې به ,, ښ ،، ضرور ليکلے شي۔

۱۰. يو ,, واو ،، داسې هم وي ۔چې بل توري سره شريک وئيلے شي ۔لکه فارسي کښې ,, خوان ،، پښتو کښې خولۀ۔په دې کلمو کښې واو د خ سره شريک ادا کيږي

دي ته واو معدوله وائي ـ په فارسي کښې دا واو صرف
د خ سره شريک راځي ـ خو په پښتو کښې د خ ، غ ، ل
او ګ څلورو واړو نه وروستو شريک راتلے شي ـ لکه
خوله، غونډه ، ګوته ، کونډه ـ

١١. واو مجهول (مختصر واو) د پښتو په خپلو کلمو کښې
د پېښ د علامت غوندې راځي ـ لکه پوښتنه ،
لومړے، اوبهٔ ـ دا به هم دغسې ليکلے شي ـ البته د
نورو ژبو نه اخستې کلمو کښې به واو نهٔ شي ليکلے ـ
کلمه به اصلي شکل کښې ليکلے شي ـ لکه ګُل ، بُلبل ـ

١٢. معروف واو (اوږد واو) نه مخکښې توري باندې پېښ
ليکل ضروري دي ـ خصوصاً هغه وخت کښې چې د
بلې کلمې سره مشابهت لري ـ مثلاً لُور به په لام پېښ
ضرور ليکلے شي چې د ,, لور ،، سره مشابه نهٔ شي ـ د
ماشومانو کتابونو کښې واو به بې الف ليکلے شي
لکه وکړه ، ومنه به اوکړه اومنه نهٔ شي ليکلے ـ

(٥)

فېصله دا وشوه چې د پښتو مخصوص حروف ځ ، څ ،
ډ ، ښ به هم دغسې ليکلے شي ـ

د پښتو دا مخصوص توري اصل کښې مخصوص
اوازونه وو ـ چې ليک دود کښې ورته مخصوص علامات
ورکړے شو ـ رو رو هغه اوازونه بدل شو او په دوو لويو قبيلو

کښې ئې ځان ځان ته ارتقا وشوه ـ اوس دا داسې توري دي چې یو قبیله کښې یو شان اواز لري او بله کښې بل شان ـ مثلاً ښین په خټکو کښې د شین په شان وئیلے شي ـ او یوسفزو کښې د خ په شان ـ لیک دود ئې یو دے او اواز بېل بېل ـ

دې تورو کښې ټولونه وړومبے ,,څ،، دے ـ ددې توري اصل تلفظ داسې دے چې د ژبې سر پکښې د برنو غاښونو سره ولګي ـ او د چ یو نیمګړے شان اواز پېدا کړي ـ د غه وجه ده چې دا تورے ځنه پښتانۀ د سین په اواز او ځنه د ,, چ ،، په اواز وائي او لولي ـ لکه څادر چې ځنه پښتانۀ ئې ,, چادر ،، او ځنه ,, سادر ،، وائي او لولي ـ

دا تورے اکثر په هغه کلمو کښې راځي چې زمونږ په مشرقي ګاونډي ژبو هندی ، پنجابی ، سرائیکی او سندی یا په مغربي ګاونډي ژبو فارسی ، دری ، پهلوی کښې په ,,چ،، لیکلے شي ـ لکه څادر ، چادر ، څلور ، چار ، چهار ، څرمن چې په سنسکرت کښې چرمن او فارسی کښې چرم ده ـ د پښتو اکېډیمی د لغت مطابق د څ اواز د ساکنې ,,خ،، او ساکن سین نه جوړ دے ـ

د ,,څ،، نه پس بل مخصوص تورے ,,ځ،، دے ـ دا اواز د ژبې د سر او د برنو غاښونو د سر په اتصال پېدا کیږي ـ انګرېزی کښې د D او Z مشترک اواز دې ته نزدې دے ـ د پښتو اکېډیمی په لغت کښې دا د اوز په اشتراک لیکلے

شوے دے کومې کلمې چې د مشرق او مغرب په ګاونډي ژبو کښې په جيم ادا کيږي هغه اکثر او بېشتر پښتو کښې په دې شکل ليکلے شي. لکه ځوان. جوان- ځاے، جاے. دا توري د پښتنو څنه قبيلې په جيم او څنه په ز ادا کوي. لکه ځولۍ چې ځوک ورته جولۍ وايي او ځوک زولۍ.

د پښتو دريم مخصوص تورے ,,ږ،، دے. ددې يو قسم خو د فارسۍ د ,,ژ،، په شان ليکلے شي. خو خالصو پښتو کلمو کښې څنه قبيلې ژ ادا کوي او څنه جيم کلمې لکه ږبه. جبه- ږوند. جوند. دا عموماً هغه کلمې دي چې د فارسۍ نه راخستې شوي دي. هلته ئې تلفظ ,,ز،، وو لکه ږبه، زبان- ږوند. زندګی. د پښتو څنه قبيلې مطلقاً د ږ تلفظ ز ته نژدې نژدې کوي.

د ,,ږ،، دوېم قسم د پښتو مخصوص علامت ,,ږ،، دے. دې اصلي تلفظ د غين او ګاف تر ميانځه دے. او هغه ټول الفاظ په دې شکل ليکلے شي کوم چې څنه قبيلې په ژ او څنه په ګاف وائي. دا تورے ډېر زيات استعماليږي. ځکه چې د فعل حال ,,ږي،، په دې شکل ليکلے شي. ماتيږي، خوږيږي وغيره.

,,ښ،، په اصل کښې خو هغه ځاے استعمالېدو. کوم ځاے چې اواز د حلق په ځاے د تالو له ميانځه راووځي. په دې شکل دا تورے د انګريزۍ د X سره نژدې دے. او س په

هغه ټولو کلمو کښې استعماليږي کومې چې د پښتو څنه قبيلې په ش او څنه په خ ادا کوي - لکه پښتون ، پشتون ، پختون -

دا کوم فرقونه يا استعمال چې وليکلے شول دا د عامو او سرسري قاعدو د لاندې راځي - او ددې تورو د ټول استعمال احاطه نۀ کوي - په مخصوصو تورو کښې صرف هغه کلمې ليکلے شي چې پښتنې قبيلې ئې په استعمال کښې اختلاف لري او هر ليکونکے د داسې ټولو کلمو علم نۀ شي لرلے - بلکې شايد يو ليکونکے هم پوره پوره علم نۀ لري - پکار ده چې د ټولو قبيلو د مستندو عالمانو په اشتراک يو داسې فرهنګ مرتب شي چې د دا قسمه ټولو الفاظو احاطه وکړي -

په دې سلسله کښې د مذاکرې ټولو ممبرانو په اتفاق دا سفارش وکړو چې پښتو اکېډيمي دې د مرکزي او صوبائي حکومت په مدد د استاذانو او طالب علمانو دپاره يو رهنما کتاب تيار کړي چې ددې ټکو په استعمال اشتباه ختمه شي -

( ٦ )

يوه بله اهمه مسئله د ,, ی ،، د مختلفو شکلونو ده - په زوړ ليک دود کښې د عربۍ فارسۍ په شان د پښتو دپاره د ,,ی ،، دوه شکله وضع کړے شوي دي - پرته يا مجهوله ,,ے ،، او غونډه يا معروفه ,, ی ،، د تلفظ په اعتبار سره دا دوه شکله

د پښتو ضرورت نۀ پوره کوي ـ په پښتو کښې کم نه کم پينځه تلفظه د يو بل نه واضح جدا دي ـ

١. د زورکي نه پس ے لکه سړے
٢. د زير نه ی لکه سړي
٣. چې په ,, ی ،، زور اچولے شي لکه جينۍ
۴. د فعل ,, ی ،، لکه وکړئ
۵. او د زېرکي نه پس ,, ی ،، لکه سړې اوبۀ ـ

ددې ټولو تلفظونو دپاره جدا جدا علامات متعين کول ضروري دي ـ چې په يو بل کښې اشتباه ختمه شي ـ ګنې دا به ګرانه شي چې لغت کښې ,, سړے ،، ته څۀ معنی وليکلے شي ـ مراد يخ ماتې اوبۀ ؟

دې مذاکرې فيصله وکړه چې :-

(١) مجهوله ,, ے ،، چې په صوبه سرحد کښې پرته ليکلے کيږي ـ دا به دغلته هم دغسې ليکلے کيږي او افغانستان کښې په خپل طور ـ

مجهوله ,, ے ،، هغه ,, ے ،، ده چې مخکښې ترې د پښتو مخصوص حرکت ,, زورکے ،، وي ـ لکه خدائے ، سړے ، زمرے ، خائے ـ په اسمونو کښې دا ,, ے ،، اکثر د واحد مذکر دپاره استعماليږي ـ بهر صورت پېژندګلوئې په مخکښې حرف زورکے دے ـ

دا مجهوله ,, ے ،، به د کلمې په مېنځ کښې په لاندې باندې ټکو ليکلے شي ـ لکه خېر ، ډېر

(٢) د پښتو مخصوصه ,, ې ،، به د کلمې په مېنځ او آخر دواړو کښې په لاندې باندې ټکو ليکلے شي ـ لکه سړې اوبهٔ ـ ماتې ډيوې ـ

د پښتو مخصوصه ,, ې ،، هغه ده چې مخکښې ترېنه د پښتو مخصوص حرکت زېر کړے وي ـ د ,, ې ،، دا تلفظ په بله ژبه کښې نشته او په پښتو کښې ډېر زيات دے ـ

دا ,, ې ،، په کوم کوم ځاے کښې استعماليږي ـ اصل معيار خو ئې اواز دے ـ د کومې ,, ې ،، نه چې وړاندې زېر کړے وي ـ زبر نه وي ـ او لنډه وئيلې شي ـ هغه به ,, ې ،، ليکلے شي ـ يعنې کومه ,, ې ،، چې ,, د سړے ،، په شان پرته نهٔ شي وئيلې او د ,, سړي ،، په شان مخکښې ترې واضح زېر نهٔ وي ـ هغه مخصوصه ,, ې ،، ده ـ لکه :

أ- چې ، کښې ،ترې او متصيل ضميرونه ې. دې ، مې ـ

ب- د کوم مفرد اخر کښې چې ,, ه ،، وي ـ جمع ئې په دغه ئې راځي ـ لکه ښځه ، ښځې ـ شمه ، شمې ـ ډېر ، ډېرې ـ

ج- هم دغه مفرد د حروف مغيره نه وروستو لکه سروه ، د سروې ونه ـ

د- اسم مفعول ، واحد مؤنث لکه وهلې شوې ، خوړلې شوې.

ه- واحد مؤنث چې اخر کښې ئې سخته ی نۀ وي. لکه ادې ، بې بې وغيره.

مذکر خوړلے شوے مؤنث خوړلې شوې

و- فعل امر چې د مصدر لام پکښې حذف نۀ وي . دا وولیکلے شي. دا وو خوړلے شي.

ز- فعل نهي چې د مصدر لام پکښې حذف نۀ وي. دادې ونۀ لیکلې شي.

ح- فعل حال ، واحد مذکر ، تۀ ځې.

ط- فعل مستقبل ، واحد حاضر ، تۀ به ځې.

ي- فعل ماضي مطلق. واحد حاضر ، تۀ لاړې. دغسې

په ماضي قريب او بعيد کښې په فعل استمراري کښې واحد حاضر ، تۀ تللې او جمع مؤنث غائب ، ښځې تللې . په ماضي تمنائي کښې واحد مؤنث حاضر ، کاش تۀ تللې وے. او واحد مؤنث غائب کاش هغه تللې وے (واحد مذکر حاضر او غائب به په مجهوله ئے لیکلے شي) په شرطيه کښې هم دغسې.

دا يو څو مثالونه دي. اصل قانون ئې هم دغه دے. چې د کومې يې نه مخکښې زېر کړے وي . هغه به په غونډه ,,ی،، او لاندې باندې ټکي لیکلې شي- ,,ې،،

(۳) يا ئې تانيث به په اخر کښې د کش سره ليکلے شي - لکه کرسی ، جينی -
په دې ی کښې به د ی د مخکښې حرف فشار پريوځي او دا صرف په مؤنثو اسمونو کښې استعماليږي -
(۴) د فعل دپاره به د غونډی ,, ی ،، د پاسه همزه ليکلے شي - لکه وکړئ ، ومنئ -
(۵) د معروفې ئې دپاره به د ,, ي ،، د لاندې دوه څنګ په څنګ ټکي ليکل مناسب وي - چې د افغانستان د مجهولې ی سره اشتباه نۀ شي - معروفه ي هغه ده چې مخکښې ترې واضح زېر وي - لکه سړي ، زمري ، په خالصو پښتو الفاظو کښې دا عموماً د سنه مفرد جمع راځي - چې اخر کښې يې معروفه يې وي - لکه سړے نه سړي - په دغسې لفظ چې حروف مغيره داخل شي هم پرته ئے په يا ئې معروفه کښې بدليږي - لکه د زمري نوکه، په عربي فارسي الفاظو به داصل مطابق ليکلے شي -
(٦) په ضمير متصل او ئې کښې به په ئې باندې همزه ليکلے شي او مخصوصه ئې به ليکلے شي - په يې کښې به يوه ,, ې ،، ليکلے شي - او په بله ی به همزه ليکلے شي - لکه يئ -
د ,, ی ،، دا مختلف استعمالونه په افغانستان او بلوچستان کښې رائج دي - او ليکونکي ورسره عادت شوي دي - انشاء الله دلته به ورسره خلق ډېر زر عادت شي - او بيا به پکښې څۀ تکليف نۀ وي -

# د پښتو په لیک لار
## د باړه ګلی د مذاکرې فیصلې

د پښتو لیک لار دپاره کومه کمېټي چې په متفقه ډول منتخب کړے شوه هغې د پښتو د لیک لار په باره کښې متفقه فېصلې داسې وکړې :-

١. هغه کلمې چې د عربی او فارسی نه پښتو ته راغلي دي ـ او معنٰی ئې هم هغه ساتلې ده هغه به په خپل اصل شکل کښې لیکلے شي لکه قمیص ، قصه ، ضعیف ـ

او هغه کلمې چې پښتو خپلې کړې دي ـ معنٰی یا شکل ئې بدل شوے ، هغه به په پښتو کښې په اوښتي شکل لیکلے کیږي لکه تپوس ، پام او د عربی مخصوص تکي به د پښتو په کلماتو کښې نهٔ لیکو ـ مثلاً تور خم به په ,, ت ،، لیکو په ,, ط ،، به ئې نهٔ لیکو ـ

۲. ,, ڼ ،، به د يو توري په شکل کښې د پښتو په اب ت يعني حروف تهجي کښې د ,, ن ،، نه وروستو ليکلے شي او نوم به ئې ,, نوڼ ،، وي۔

۳. هغه کلمې چې په اخر کښې زوَر لري هغه به په ,, ه ،، ليکلے شي لکه خوشحاله ( مذکر ) خوشحاله (مؤنث) او دغه ,, ه ،، به د تانيث مخصوص علامت نهٔ شي ګڼلے۔

۴. ,, مد ،، په پښتو کښې نشته۔

۵. مجهوله ,, ے ،، چې په قطبي پښتونخوا کښې پرته ليکلے کيږي هغه به هم داسې پرته ليکلے شي۔ لکه سړے وغيره ۔ البته په افغانستان او سويلي پښتونخوا کښې به د دوئي د خپل ليک دود سره سمه د مخکښې په شان ليکلے کيږي۔

۶. مخصوصه ,, ې ،، به د کلمې په مېنځ کښې ,, ېـ ،، داسې او اخر کښې ,, ې ،، ليکلے شي لکه سړې اوبهٔ، خبر وغيره۔ مجهوله يعني پرته ,, ے ،، به هم د کلمې د مخصوصې ,, ېـ ،، غوندې ليکلے شي۔

۷. د معروفې ,,ي ،، له پاره به دوه ځنګ په ځنګ ټکي ,,ي ،، ليکلے شي لکه سړي ، زمري وغيره۔

۸. يائې تانيث ,,ۍ ،، به په اخر کښې د کش سره ليکلے شي لکه کرسۍ ، جينۍ وغيره۔

۹. د فعل امر دپاره به د مخکښې غوندې ,, ی ،، دپاسه ,, ء ،، ليکو لکه وخورئ ، وکړئ وغېره -

۱۰. په ضمير متصل او ,, ئې ،، کښې به په ,, ی ،، باندې همزه ليکلے شي او مخصوصه ,, ې ،، به ليکلے شي او يا به ,, ی ،، او مخصوصه ,, ې ،، ليکلے شي لکه په يئ کښې به يوه ,,ی ،، او دوېمه ی ،، باندې همزه ليکلے شي -

۱۱. په داسې ,, ه ،، کښې لکه زړهٔ ، ښهٔ ، بهٔ ، تهٔ د مخکښې په شان د ,, ه ،، دپاسه ,, ء ،، ليکو يعني زړهٔ ، ښهٔ ، څهٔ کښې به د ,, ه ،، دپاسه ,, ء ،، وي په افغانستان او سوېلي پښتونخوا کښې به هم دغه رنګ ليکلے شي -

۱۲. ,, ګ ،، به په کونډه ليکلے شي -

۱۳. کښې کښېناستل ، نخښه او داسې نور ټکي به هم دغه رنګ ليکلے شي -

۱۴. معدوله ,, واو ،، به د ټکو نه نشي غورزولے لکه خونه ، خوارهٔ ، ګوند ، غوندې وغېره -

۱۵. هغه ټکي يا کلمې چې د عربی او فارسی نه د پېښ په حالت کښې راغلي دي ، په پېښ به ليکلے شي - يعنې په خپل رنګ کښې لکه ګل ، بلبل - هغه پښتو کلمې چې پېښ لري هغه به په مجهول ,, واو ،، ليکلے شي لکه پوښتنه مور او نور -

۱۶. معروف واو به د کلمو نه نۀ غورزولے کیږي. او دپاسه به پېش ورکولے شي لکه نُور ، سُور وغیره.

۱۷. د پښتو مخصوص توري څ ، ځ ، ښ ، ږ به همدغسې لیکلے شي.

د کمېټۍ سفارش دے چې پښتو اکېډمي دې د مرکزي او صوبائي حکومت په مدد د استاذانو او طالبعلمانو دپاره یو رهنما کتاب تیار کړي چې ددې ټکو په استعمال کښې اشتباه ختمه شي.

## زیرِ دستخطي

۱. جناب پروفېسر سید تقویم الحق کاکاخېل
۲. جناب پروفېسر جهانزېب نیاز
۳. جناب پروفېسر نصیرالدین
۴. جناب حبیب الله رفیع
۵. جناب منتظر بېټني
۶. جناب عبدالکریم بریالے
۷. جناب همېش خلیل

۸. جناب ډاکټر محمد اعظم اعظم
۹. جناب ډاکټر خالد خان خټک
۱۰. جناب محمد پروېش شاهين
۱۱. جناب پروفېسر محمد افضل رضا (اعزازي ممبر)
۱۲. جناب پروفېسر خواجه محمد سائل
۱۳. جناب نور شاه جهان انور
۱۴. جناب سيال کاکړ
۱۵. جناب ډاکټر ګل جان ورور وردګ (اعزازي ممبر)
۱۶. جناب سيد احمد مومند
۱۷. جناب ډاکټر محمد اسرار (اعزازي ممبر)
۱۸. جناب ډاکټر محمد اقبال نسيم خټک
۱۹. جناب خيبر افريدے
۲۰. جناب پروفېسر يار محمد مغموم

دا فېصلې اګرچې تر ډېره حده واضحه دي خو بيا هم ځنې پکښې تشريح طلب ښکارېدي . ځکه نو دلته ئې په دې غرض په تفصيل سره بيانوو چې يو خو عام لوستونکے په دې نوې املا پوهـ شي او يا که په نوې املا کښې ليکلي کتابونه رسالې څوک لولي نو چې لوستونکے په کښې څۀ تکليف محسوس نه کړي-

په عام فهمه ژبه کښې د دغه ټولو فېصلو وضاحت کړے شوے دے او د زياتو ګرائمري اصطلاحاتو نه مو ځان

ژغورلې د ے ـ بیا هم چرته چې داسې اصطلاحات راغلي دي د هغوي وضاحت تر خپله وسه کړے شوے د ے ـ کۀ چا ته په دې کښې څۀ ابهام ښکاره شي یا څۀ تېروتنه پکښې شوي وي کۀ هغه په ګوته کړے شي او یا څۀ نور تجویزونه په دې لړ کښې راواستولے شي نو مننه به وي۔

---

**وړومبی فېصله** :

هغه کلمې چې د عربی او فارسی نه پښتو ته راغلي دي او معنیٰ ئې هم هغه ساتلې ده ـ هغه به په خپل اصل شکل کښې ليکلے شي ـ لکه قميص ، قيصه ، ضعيف وغېره ـ

پښتو ژبه کښې ډېر داسې ټکي دي چې د عربی او فارسی نه پښتو ته راغلي دي او پښتو کښې هم په هغه معنیٰ استعمالېږي ـ کومه چې ئې په دغه ژبو کښې ده ـ د داسې قسمه ټولو ټکو، کلمو په حقله دا فېصله شوې ده چې د دېو په املا کښې به بدلون نۀ شي راوستے ، که هر څو د داسې ټکو تلفظ کله کله ګران هم شي ـ ولې يو خو دا ټکي د خپلې اصلي املا له لحاظه اوس پښتو کښې مانوس شوي دي او د خالصې معنې راز هم پکښې دے ـ

پښتو ا ، ب ، ت يعنې حروف تهجي کښې څنې توري هغه دي چې د عربی د اوازونو دپاره مخصوص دي د داسې توريو صحيح تلفظ يعنې د اواز وېستو طريقه يواځې د عربی ژبې وئيونکي کولے شي د نورو قامونو دپاره ئې ادا کول ګران

دي ـ تر څو چې د بلې ژبې خاوند د تجوید او قرأت په فن پوهه نهٔ وي ـ دغه مخصوص توري دا دي ـ

ح ، ص ، ض ، ط ، ظ ، ع ، غ ، ث ، ذ او ق

دا اکثر په وئیلو کښې مشکل پېدا کوي خو دومره ګران نهٔ دي ـ په پښتو کښې چې مونږ ګورو په دغه مخصوصو د عربۍ تورو کښې ړومبۍ پسته ,, حې ،، ح ده ـ دې ته طنزاً د حلوا حې هم وائي ـ ددې اواز پښتو کښې اکثر د الف د اواز په شان کېږي او نزدې نزدې د هر هغه ټکي اواز په الف کولے شي چې دغه حې لري حلوا ته الوا ، حرام ته ارام ، حُسن ته اُسن وغېره ـ خوشحال کښې دا ,, ح ،، په مېنځ کښې راغلې ده ـ ولې اکثر خوشال تلفظ کېږي ـ او داسې نور ـ

د ,, ص ،، اواز په ,, س ،، کولے شي ـ د ص چې کوم مخصوص اواز دے ـ د هغې ادا کول د عربو نه سېوا نور څوک په اسانه نهٔ شي کولے ـ پښتانهٔ هر چرته دا اواز د خپل فطرت په مطابق په س کوي ـ داسې حال د ,, ض ،، هم دے ـ ضاد ، ضواد یا دواد وئیلے شي ـ

په روزمره ژوند کښې د ض اواز په ,, ز ،، کولے شي لکه زمانت ، زامن وغېره ـ چې په اصل کښې ضمانت او ضامن دي کله کله په ,, د ،، هم ادا کولے شي ـ لکه رضوان ته ردوان ـ خو د ,, ض ،، په خپل اواز کښې لاتر اوسه په نمانځه کښې هم د والزالین او والدوالین جګړه ده ـ داسې د ,,ط ،،

اواز په ,, ت ،، او د ,, ظ ،، دپاره د ,, ذ ،، په شان اواز وباسلے
شي او هم دا قاعده جوړه شوې ده ـ ددې تورو اوازونه د خپل
فطرتي مخرج په بنياد ادا کولے شي ـ

اوس سوال دا پيدا کېږي چې هر کله يو ټکے مونږ
څنګه وايو هغه شان ئې ليکو ولې نا ـ نو په دې خبره د کافي
غور و فکر نه پس دا فيصله شوې ده چې کوم ټکي د عربی،
فارسی يا د نورو ژبو نه پښتو ته راغلي دي او هم په هغه معنو
کښې استعمالېږي ـ کومې معنې چې ئې په خپلو اصلي ژبو
کښې دي هغه به په املا کښې هم هغه شان ليکلے کېږي او
شايد ددې ضرورت له مخه د پښتو د حروف تهجي نه د عربی
يا فارسی هغه مخصوص توري نهٔ شي ويستلے ـ که هر څو ئې
مونږ سره اواز يا مخرج نشته ـ لکه قميص به کميس نهٔ ليکو ـ
ځکه چې قميص د عربی ټکے دے او معنٰی ئې هم بدله نهٔ ده ـ
ضعيف د عربی ټکے دے او خپله معنٰی لري ځکه نو ضعيف
به مونږ هم په هغه رنګ ليکو ـ ظرف که زرف وليکلے شي غلط
به وي ـ علاج ، علامت ، صبا ، صحيح ، قميص ، قيصه ،
حلوا ، حرام ، ضبط ، ضابطه ، طريقه ، طور ، ظالم ، صراف
او داسې نور ډېر ټکي چې د ديو ژبو نه راغلي دي ـ پښتو
کښې ئې عـام رواج موندلے دے او معنٰی ئې هم دغه ساتلې
ده ـ نو دا به په خپله اصلي املا ؛ کښې ليکلے شي ـ

**دويمه فيصله** :-

,, هغه کلمې چې پښتو خپلې کړي دي معنی يا شکل ئې بدل شوے دے هغه به په اوښتي شکل ليکلے کېږي .لکه تپوس ، پام او د عربی مخصوص توري به د پښتو په کلماتو کښې نۀ ليکو .مثلاً تورخم به په ,, ت ،، ليکو په ,, ط ،، به ئې نۀ ليکو ،، .

دا د غور وړ خبره ده .کله کله په املا کښې داسې بې احتياطي راشي چې د ټکي ټوله املا ګډه وډه کړے شي .ددې نفسياتي يا فطري جواز هم وي او د Confusion يو صورت راپيدا کړي .هغه داسې چې هر کله مونږ د عربی مخصوص توري پکار وو او تلفظ ئې د خپل فطري مخرج په مطابق کوؤ نو لاشعوري تاثر دا راولاړيږي چې ګني هسې هم د ,, ت او ط اواز يو شان دے يا د ,, ع ،، او ,, الف ،، او ,, ح ،، د ,, ص ،، او ,, س ،، د ,, ض ،، او د ,, ذ ،، د ,, ز ،، او ,, ظ ،، د ,,ک ،، او د ,, ق ،، وغيره دغه سبب دے چې په بې احتياطی داسې املا غلطه کړے شي.

مونږ به هغه ټکي چې خالص د پښتو دي يا د بلې ژبې نه پښتو ته پخوا راغلي دي خو شکل ئې له پخوا راسې بدل

شوے دے یا ئې معنٰی بدله شوې ده نو داسې ټکي به مونږ د پښتو په خپلو توريو ليکو ـ وړومبې خبره دا ده چې پردي ټکي چې مفغن یا پښتو شوي دي لکه تپوس چې د پوښتنې په معنو کښې رائجي ـ اصلاً د عربۍ تفحص نه په پښتو کښې تپوس شوے دے ـ پام د فهم نه پام شوے دے ـ داسې ځنې نورې ډېرې کلمې چې پښتو کښې ئې خپل شکل یا پښتني رنګ قايم کړے دے ـ هغه به مونږ د عربۍ په مخصوصو توريو نۀ ليکو بلکې په اوښتي شکل کښې چې څنګه پښتو کښې رائج دي هم هغسې به ئې ليکو ـ کۀ معنٰی ئې بدله شوې نۀ هم وي د داسې ټکو شمېر به يقيناً چې د ګوتو په شمېر وي ـ يعنې کم به وي خو دا لحاظ ساتل پکار دي او دغه ټکي اوس پښتو شوي دي ـ

دې سره دا فېصله هم ده چې د پښتو پخپلو ټکو کښې به د عربۍ مخصوص توري نۀ ليکو لکه تورخم ، توره او ځنې نور د پښتو داسې کلمې ، ټکي چې د پښتو وي دا به په ,,ت،، ليکو ـ که چرې دا په ,, ط ،، وليکلے شي يعنې طورخم ، طوره نو دا به غلط وي ـ هډ ، هډوکے ، هوډ که چرې حډ ، حډوکے يا خوډ ځوک وليکي نو دا غلط دي ـ سخر ،ساګ او سر به صخر ، صاګ يا صر نۀ ليکو ـ زيات ، زمرے ، زانګو به ضيات يا ضياط يا ظيات او ضمرے ، ظمرے ، ضانګو نۀ شي ليکلے ـ

دي سره دا خبره هم یاد ساتل پکار دي چې په پښتو کښې د عربۍ د مخصوصو توريو سره سم د ځنې مخصوصو پښتو توريو اوازونو کښې هم اکثر غلطي را وړاندې کېږي ـ د ,,ذ ،، او ,,ز ،، اواز نهٔ یواځې د عربۍ په مخصوصو توریو سره غلطه کړے کېږي بلکې د پښتو مخصوص توري ,,ځ،، سره هم اکثر غلط شي ـ ,,ځ ،، چې د ,,ج ،، او ,,د ،، تر مېنځه د پښتو یو مخصوص اواز دے ځنې لهجې ئې تلفظ کښې د ,,ز،، په ځاے استعمالوي ـ دا هم غلطي ده ځکه چې پښتو کښې د ,,ځ ،، خپل مخصوص اواز دے او د ,,ز ،، خپل عام اواز دے ـ نو په هغه توريو کښې خصوصي احتیاط پکار دے چې په ,,ځ ،، لیکلے شي ـ

وړاندې ذکر شوي ټکي او داسې نور چې د ,,ز ،، یا ,,ذ ،، ټکي دي هغه که په ,,ځ ،، ولیکلے شي نو غلط به وي ـ لکه زیات ، زمرے او زور که ځیات ، ځمرے او ځور څوک لیکي نو غلط دي ـ

دا شان ,,اواز ، اباسین ، ارام ،، که څوک ,,عواز ، عواظ ، عواض لیکي یا اباسین ، عباسین ، عباصین لیکي نو ناروا ده ـ ارام که عرام لیکي یا هرام لیکي غلط دے ـ کار به قار نهٔ لیکو ـ کور به قور نهٔ وي ـ البته قار د عربۍ د قهر نه بدل شوے دے ـ او پښتو کښې داسې ټکي چې چرګې ,,هـ،، لري د ,,الف ،، اواز ورکوي که د ټکي په مېنځ کښې راشي او

په بدل شکل يا پښتني شکل هغه ټکي وليکلے شي چې دا ,,ه،، لري نو باک ئې دومره نشته خو چې اواز ئې پښتو کښې بدل شوے وي هله۔

په داسې قسمه توريو کښې يو اواز د ,,ف،، هم دے۔ ,,ف،، پښتو کښې اکثر نشته خو اواز ئې اسان دے ۔او پښتانۀ ئې په اسانه ادا کولے شي ۔دغه وجه ده چې د ,,ف،، اواز اوس پښتو کښې عام دے ۔کوم ټکي چې د پښتو په ,,پ،، کښې دي ۔د ,,ف،، کله کله غلط استعمال پکښې راځي يعنې د استعمالولو غلطي ئې په نورو داسې ټکو کښې راشي چې ,,ف،، او ,,پ،، دواړه توري لري ۔په دې ټکو او ددې په تلفظ کښې احتياط پکار دے[1]۔

داسې ډېر ټکي دي چې د ,,ه،، ,,ھ،، او ,,الف،، د اواز اشتراک لري ۔خو په املا کښې د ټکي خپل اصل شکل د هغې املا او د صحيح املا دپاره پکارول پکار دي۔

داسې ټکي پېژندل پکار دي چې په کومو کښې دا توري راځي د مثال په ډول هېڅ ، هغه ، هم وغېره داسې ټکي دي چې دا ,,ه،، به پکښې وي نو دا د پښتو خپل ټکي به په

---

[1] لکه چې ,,فقير له پېسه ورکړه،، ځنې وخت په خطايي سره ,,پقير له فېسه ورکړه،، تلفظ کېږي خو داسې ليکل او وئيل دواړه غلط دي۔پروفېسر ته فروپېسر وېل صحيي نۀ دي او نۀ داسې ليکل مناسب دي۔

,,ه،، يا ,,ھ،، ليکلے شي - په الف به نۀ شي ليکلے - دې پسې فيصله د ,,ڼ،، د توري په باره کښې ده چې :-

,,ڼ،، ديو توري په شکل کښې د پښتو په ا، ب، ت يعنې حروف تهجي کښې به د ,,ن،، نه وروستو ليکلے شي او نوم به ئې ,,نوڼ،، وي -

,,ڼ،، د نون او ړ د مخصوص غبرګ اواز دپاره مشرانو ډېر پخوا رائج کړے ؤ - خو استعمال ئې چرته کېدو او چرته نه - په پښتو کښې د ,,ن،، او ,,ړ،، اکثر غبرګ اوازونه راځي - او داسې هم وي چې په يو ټکي کښې د ن او ړ جدا جدا اواز هم وي - هر کله چې داسې ټکي به ددې فيصلو نه وړاندې يو رنګ ليکلے شول يعنې د نړ په شکل کښې نو اکثر به د غلط تلفظ ويره وه - د مثال په توګه کُونړ او کونړ په دغه لحاظ د املا د مخه يو شان ټکي دي - يو خو د هغه کوڼ دپاره وو چې غوږونه ئې خراب وي او څۀ اوري نه او بل د افغانستان يوه مشهوره سيمه کونړ دے - داسې قسم نور ټکي هم کېدے شي -

ولې ددې نه زياته ضروري خبره په پښتو کښې د يو مخصوص اواز وه چې څۀ توري ئې نۀ لرلو يا څۀ داسې علامت ورته نۀ وو وضع کړے شوے چې دغه اواز پرې ادا کړے شي - يعنې په ظاهره خو دا اواز د ,,ن،، او ,,ړ،، مرکب

شاني اواز دے۔ خو مرکب نۀ دے۔ بلکې د ,, ن ،، او ,, ړ ،، د مخرجونو په يو ځاے استعمال لري۔ لکه پڼه ، رڼا ، ښڼه ، ګڼ وغيره ۔ هم ددې ضرورت له مخه په پښتو کښې دا توری شامل کړے شوے دے او د يو مستقل توري په حېث په پښتو کښې د ډېر پخوا راسې رائج ؤ ۔ ولې فېصله پرې نۀ وه شوې يا کۀ شوې وه نو چرته منلے شوه او چرته نه۔

اوس په متفقه ډول دا فېصله اوکړے شوه چې دا ,,ڼ،، به د پښتو د ا ، ب ، ت يا حروف تهجي يو مستقل تورے وي او په ترتيب کښې به د نون نه پس ليکلے شي۔ په دې حساب دا د پښتو شپږ د ډېرشم ,, ۳۶ ،، تورے اوګرځولے شو۔

ا ب پ ت ټ ث ج ځ چ څ ح خ د ډ ذ ر ړ ز ژ ږ س ش ښ ص ض ط ظ ع غ ف ق ک ګ ل م ن ڼ و ه (هـ) ي ې ی ۍ ئ ے او د خپل مخصوص اواز کوم چې په رڼا ، ښڼه ، پڼه ، ګڼ ، تڼا ، شڼا وغېره کښې ښکاري هلته به ليکلے شي ۔ چرته چې د ن او ړ جدا اوازونه وي هغه به جدا ليکلے شي۔

**دريمه فېصله**

هغه کلمې چې په اخر کښې زوَر لري هغه به په ,, ه ،، ليکلے شي۔ لکه خوشحاله مذکر

خوشحاله مؤنث او دغه ,,ه ،، به د تانیث
مخصوص علامت نهٔ شي ګڼلے ـ

دا یوه اهمه فیصله ده ـ په دې چې دا ,,ه ،، په پښتو
کښې اکثر د تانیث علامت دے او په هر هغه اسم کښې چې دا
,,ه ،، په اخر کښې راځي اکثر مونث وي او دا د تانیث د اسم
جوړولو قاعده هم ده ـ ډېر داسې مذکر اسمونه دي چې ,,ه ،،
ورسره ولګولے شي نو مؤنث شي ـ د چرګ نه چرګه ـ سپین نه
سپینه ـ روغ نه روغه وغیره ـ ددې نه سېوا هم په پښتو کښې
ځائي مونث اسمونه هم هغه دي چې په اخر کښې ئې دا ,,ه ،،
وي ـ لکه کوټه ، بوساړه ، لاره ، شنه ، تره وغیره ـ خو هر کله
چې په پښتو کښې یوه قاعده دا هم ده چې د ګرامري اصولو لهٔ
مخه صفتي اسمونه په جملو کښې په بل Case کښې داسې
استعمالولے شي چې د اسم په اخري توري زور لګي او اواز ئې
هم داسې شي لکه چې ددې ,,ه ،، اواز ورکوي ـ د مثال په ډول
به مذکر او مؤنث اسمونه وړاندې کړو ـ خوشحال او خوشحاله ـ
خوشحال مذکر او خوشحاله مؤنث دے ـ اوس د جملې په یو
مخصوص Case کښې مونږ وایو چې فلانے سړے خوشحاله
دے یا هغه ناروغه دے یا اتاله دے وغیره ـ نو دا فیصله
وکړے شوه چې داسې مذکر اسمونه به په اخري توري د زور
سره نهٔ ځرګندوو بلکې دا ,,ه ،، به ورسره لګوؤ او هر کله چې

د مذکر اسم سره د جملې په ساخت کښې ,, ه ،، لګولے شي نو بیا پکار نۀ ده چې دا ,, ه ،، د مونث اسم دپاره مخصوصه ګڼلے شي۔ چونکه دا په وېنا کښې دواړو اسمونو سره راځي نو مؤنث اسمونه چې په دغه ,, ه ،، لیکلے شي هغه خو دي ،ولې ضروري نۀ ده چې د تانیث علامت دې اوګڼلے شي ۔ کۀ هر څو مونږه دا قاعده او ترکیب لرو ۔خو د مذکر دپاره به هم پخپل مخصوص ځاے کښې استعمالیدے شي ۔هغه اوازونو کښې چې د مذکر اسم ئې په یو خاص حالت کښې لري۔ زوَر به نۀ لګي بلکې دا ,, ه ،، به لګولے شي۔ په دې لحاظ به دا ,, ه ،، ددې نه پس د تانیث مخصوص علامت نۀ وي۔

## څلورمه فیصله

,, مد ،، په پښتو کښې نشته۔

مد د عربۍ د اعرابو یو علامت دے او په ډېرو هغه اوازونو کښې چې یو ولاړ او اوږد تال پکښې ورکولے شي استعمالیږي ۔ دا اکثر د الف د توري په سر راځي ۔ په پښتو کښې ددې استعمال نشته۔ البته د عربۍ ، فارسۍ یا اردو له اثره چې کوم ټکي پښتو ته راغلي دي ۔ د هغو سره مد هم راغلے دے۔ حالانکې د پښتو خپل داسې اواز نشته۔ اردو ژبې

د ځني خالصو هندي ټکو دپاره هم مد لازمي ګڼلے د ے ـ چې دا
اواز دغـه رنګـه ټال لـري ـ نو هر کله چې د اردو نـه هغـه ټکـي
پښتو ته راتلل ، نوم خو ئې بدل نۀ کړو ولې د پښتو د مزاج لۀ
مخه ترې په وېنا کښې مد وغورزولے شو او په عامه ژبه کښې
چې هر چرتـه د بلې ژبې کـوم مخصوص ټکـے وي د هغې نـه
علاوه هم مد غورزولے شي ـ دا قسمه نومونه يا کلمې په پښتو
کښې د پښتو په قاعده عام استعمالېږي او د مد په ځاے
پکښې د زور اواز ورکولے شي ـ

نو هر کله چې په پښتو کښې د مد استعمال نشته او
بيا هم په ځنو کلمو کښې د اردو د اختلاط له وجې ليکلے شي
بې ځايه ښکاري او هلته خو بېخي بې ضرورته ليد ے شي چې
کلمـه د پښتو وي او مد پرې ولګولے شي ـ ځکـه دا فېصله
وکړ ے شوه چې مد پښتو کښې نشته او د پښتو په کلمو به
نشي لګولے ـ آم ، آواز ، آزاد کښې چې په الف کوم مد د ے دا
پښتو کښې د زور اواز د ے ـ اَم ـ اَواز ، اَزاد وغېره ـ

## پنځمه فېصله

مجهولـه ,, ے ،، چې پـه قطبي پښتونخـوا
کښې پرته ليکلے کېږي هغه به هم داسې
پرته ليکلے شي لکه سړ ے ، زمر ے وغېره ـ

البته په افغانستان کښې او سوېلي پښتونخوا کښې به د دوئي د خپل ليک دود سره سمه د مخکښې په شان ليکلے شي.

دا فيصله هم ډېر اهميت لري . ددې نه وړاندې د مجهولې ,,ے،، په استعمال کښې ډېره زياته بې احتياطي کېده. او ددې بې دربغه غلط استعمال د پښتو په املا کښې ډېر خرابے راوستے ؤ . د باړه ګلی په مذاکره کښې په دې ډېرې خبرې وشوې چې پکښې د سوېلي پښتونخوا کوئټې او د افغانستان پوهان شامل وو. په سوېلي پښتونخوا کښې او هم په افغانستان کښې د مجهولې ,, ے ،، پروت شکل نشته او هغوي په هغه اسمونو کښې چې مجهوله ,, ے ،، لري. پرته نهٔ ليکي. او د پښتو د پخوانی املا د يائې معروف په شان ئې ليکي. هغوي سره د مجهولې ,, ے ،، د داسې استعمال ښهٔ جواز هم شته. ولې هر کله چې په قطبي پښتونخوا کښې دې پرتې ,, ے ،، ډېر عام رواج موندلے دے. که د کلمې په مېنځ کښې نهٔ وي نو په اخر کښې خو د تذکير يو علامت شان هم ګرزېدلے دے. د قطبي پښتونخوا پوهانو د موقف مطابق په دې وخت کښې ددې ,, ے ،، استعمال ترک کول مناسب نهٔ ښکارېدهٔ او نهٔ داسې صورت حال ؤ چې د سوېلي پښتونخوا يا د افغانستان عالمانو سره پرې اتفاق راغلے وے. نو په دا

سبب دا فېصله وشوه چې د قطبي پښتونخوا په املا کښې به ددې استعمال د خپل صحيح استعمال په رنګ کښې کېږي. البته په دغه ذکر شوو سيمو کښې به ددې ,, ے ،، په املا کښې استعمال زمونږ په رنګ ضروري نۀ دے هغوي به ئې په خپل رنګ کښې ليکي او مونږ به ئې هم داسې په پروت شکل کښې ليکو ـ اوس سوال دا پېدا کېږي چې دا اختلاف دې برقرار ولې وساتلے شي ـ نو اختلاف د لهجې فرق دے او د لهجې د فرق د ځرګندولو دپاره ددې په استعمال کښې څۀ عيب نۀ ښکاري.

دلته چې د پښتو په ا ب ت يعنې حروف تهجي کښې د ,,ی ،، ګانو کومّ رنګ دے ـ هغه په داسې,, ي ې ی ئ ے ،، په دې کښې وړومبی ,, ي ،، يا ئې معروف دوېمه يا ئې مخصوص درېمه يائې تانيث ځلورمه فعلي ی (چې د فعل په مناسبت به پرې د پاسه همزه لګولے شي) او هم دا ,,ی ،، به د افغانستان يا د سوبلي پښتونخوا په املا کښې د يائې مجهول په طور استعمالېږي ـ د فعل په حال کښې به پرې البته هر چرته ,,ء ،، لګولے شي.

اخري ,, ے ،، مجهوله ,, ے ،، ده ـ او په قطبي پښتونخوا کښې د کلمې په اخر کښې ددې ,, ے ،، استعمال هلته کېږي چرته چې اسم يا اسم صفت يا په فعل کښې د تذکير د علامت په توګه راځي ـ په دا لحاظ دا ,, ے ،، د کلمې

فعل یا د اسم د مذکر کېدو نخښه هم ده ـ او قاعده هم ـ په اسم کښې لکه سړے ، زمرے ، نرے ، تندے ، پتے وغېره ـ د تذکیر په فعل کښې لیکلے ، تللے ، کتلے ، راغلے ـ د صفت په اسم کښې ښاغلے ، ساتلے ، ښکلے وغېره ـ

لکه مذکر :- سړے راغلے دے ـ

مؤنث :- ښځه راغلې ده ـ

تندے داغلے دے ـ

پوزه داغلې ده ـ

پتے ئې کتلے دے ـ

بارې ئې کتلې ده ـ

هلک ښاغلے دے ـ جینۍ ښاغلې ده ـ

مذکر :- تهٔ ښکلے ئې ـ مؤنث :- تهٔ ښکلې ئې وغېره ـ

نو د مذکر او مؤنث امتیاز په اسانه ددې یې ګانو د صحیح استعمال په سبب کېدے شي ـ دا او داسې نور جوازونه هم وو چې ددې ,, ے ،، استعمال په قطبي پښتونخوا کښې په ځاے اوساتلے شو او د سوېلي پښتونخوا او افغانستان ورسره هم اتفاق راغے ـ بلَ حالت هم د لیک دود لوست له رویه څهٔ داسې ؤ چې مونږ پکښې ددې ,, ے ،، استعمال په خپله املا کښې ترک کولے نهٔ شو ـ

البته دا خبره باید چې صلائې عام شي ـ په املا کښې که څوک ددې ,, ے ،، د استعمال پېروي هغسې کوي څنګه

چې ئې مونږ په قطبي پښتونخوا کښې کوؤ ـ نو څۀ پابندي دې نۀ وي ـ مطلب دا دے چې کۀ د سوېلي پښتونخوا خلق ئې په اسانه په خپله املا کښې رائج کولے شي نو بايد چې رائج شي ـ

**شپږمه فېصله** :-

مخصوصه ,, ي ،، به د کلمې په مېنځ کښې ,, ې ،، داسې او په اخر کښې داسې ,, ي ،، ليکلے شي ـ لکه سړي اوبۀ ، خبر وغېره ـ مجهوله يعنې پرته ,, ے ،، به هم د کلمې په مېنځ کښې د ,, ې ،، د مخصوصې ,, ې ،، غوندې ليکلے شي ـ

د مخصوصې ,, ي ،، شکل چونکه په پښتو کښې مخصوص دے بل چرته نشته نو په دا سبب دا فېصله هم پخوا شوې ده او اوس هم ددې د ليکلو په مناسبت دا فېصله وشوه ـ

د يائې مخصوص اواز په پښتو کښې داسې دے چې د عربۍ د زېر سره نزدې دے ـ خو ددې نه لږ شان ې ته راجخت دے ـ په اردو کښې د ,, ی ،، دوه اوازونه دي ـ يعنې د مجهولې ,,ے ،، اواز او د معروفې ,, ی ،، اواز د پښتو د

يائي مخصوص ,, ې ،، اواز ددې دواړو تر مېنځه يو قسم اواز لري.

د مثال په طور ددې اواز فرق کۀ مونږ ګورو يو ټکے سړے ( نر ) به واخلو. ددې جمع ,, سړي ،، ده. په سړے کښې مجهوله ,, ے ،، ده او په جمع کښې ئې معروفه ,,ي ،، راځي او دا قاعده هم ده چې هر چرته مونږ د مذکر د داسې اسم جمع کوؤ نو معروفه ,, ي ،، به راځي. لکه ,, سړے روغ دے ،، ددې جمع شوه ,, سړي روغ دي ،، په سړے کښې چې څنګه اواز دے هغه په سړې اوبۀ کښې بدلېږي. يعنې سړے او سړې (ښځې) کښې د ,,ی ،، د اواز فرق دے. دا يائي مخصوص د کلمې په مېنځ کښې هم هر چرته راځي او اواز به ئې هم دغه مخصوص وي. کۀ د ټکي په مېنځ کښې راځي. نو هغه لکه : خېر ، تېر ، ګېر ، شمېر ، خېر وغېره. ولې که په اخر کښې راځي نو اکثر صفاتي نوم هم سازوي. دا هم يوه اهمه خبره ده چې هر کله په اخر کښې د فعل يا اسم سره راشي نو خامخا به د تانيث علامت وي. که په صفاتي اسم کښې راشي نو د مؤنث صفاتي اسم سره به وي لکه سړې ، ښې ، اوږدې وغېره. دا جمع مؤنث اسمونه دي. قاعده دا شان ده چې واحد مؤنث اسم چې په اخر کښې ئې ,, ه ،، راځي. د هغې د جمع په اخر کښې به يائي مخصوص راځي لکه اوږده ، اوږدې ـ اوږه ، اوږې ـ

ښه، ښې ـ سړه ، سړې ـ تېره ، تېرې ـ پښه ، پټې ـ څرګنده ، څرګندې وغېره .

ددې نه سېوا په نورو ډېرو ټکو کښې هم دا مخصوصه ,,ې ،، راتلے شي او راځي . کۀ اسم نۀ هم وي . حرف وي یا حرف جار وي . دا هر چرته د مخصوص اواز دپاره راتلے شي . لکه داسې ، ولې ، چې ، چرې . ددې ,,ې ،، یو خصوصي اهمیت دا هم دے چې د نوې املا نه وړاندې به چونکه اکثر دا نۀ شوه لیکلے نو د کلمې په مفهوم کښې به اکثر مشکل پېښېدو یعنې مخصوصه ,,ې ،، به هم اکثر په مجهوله ,,ے ،، لیکلې شوه . په کلمه کښې به اکثر د تذکیر و تانیث د فرق مشکل پېدا کېدو . ددې ,,ې ،، په راتلو دا ګراني ختمه شوه او د ګرائمر په قاعدو جوړولو کښې هم اساني راغله . په لنډو ټکو کښې که مونږ د ,,ی ،، ګانو فرق ښکاره کوؤ نو هغه به داسې وي .

مثال :- سړے سړې اوبۀ څښې . په سړے کښې مجهوله ,,ے ،، ده چې د مذکر اسم علامت دے . سړې اوبۀ کښې مخصوصه ,,ې ،، چې مؤنث ده . او څښې کښې معروفه ,,ي ،، چې لاندې دوه څنګ په څنګ ټکي لري .

کۀ په غور وکتے شي نو د درې واړو یې ګانو فرق پکښې واضح دے . څنګه چې ذکر وشو چې هر هغه اسم چې مؤنث وي د هغې جمع کښې به د تانیث د علامت به طور دا ,,ې ،، راځي .

لکه مېخانه ، مېکده ، کتبه ، حجره وغېره چې جمع شي نو مېخانې ، مېکدې ، کتبې ، حجرې به شي۔

دلته دا خبره هم زيا تول پکار دي چې په پښتو کښې اګرچې اوس ,, ه ،، د تانيث مخصوص علامت نۀ دے ولې بيا هم په خپل ترکيب کښې هر واحد مؤنث اسم به په اخر کښې دا ,, ه ،، لري او چې په کوم اسم کښې دا ,, ه ،، وي ۔د هغې د جمع په وخت کښې به يائې مخصوص لګي او دا رنګه يايې مخصوص تر ډېره حده د تانيث هم علامت دے۔

هم په دغه فيصله کښې يوه خبره بله د مجهولې ,,ے،، په حقله هم ده او هغه صرف دومره ده چې مجهوله ,,ے،، چې هر کله د کلمې په مېنځ کښې راځي هغه بـه هم د مخصوصې ,, ې ،، په شان په لاندې باندې ټکو ليکلے کېږي۔ يعنې يواځې د کلمې په مېنځ کښې به مونږه د شکل په لحاظ چې د **Voval** واول ( اعرابو ) کار کوي او ټکي يا توري سره خپلو کښې جوړوي به يواځې په ,, ې ،، دغه رنګ ليکو ۔اوازونه به ئې جدا جدا هم کېدے شي ۔چرته چې د کلمې په مېنځ کښې معروفه ,,ي ،، راځي ۔هلته به لاندې دوه څنګ په څنګ ټکي لګولے شي ۔يعنې داسې ې مجهوله او مخصوصه ې به د کلمې په مېنځ کښې په لاندې باندې ټکو ليکلے شي۔

## اوومه فیصله

د معروفې ,, ي ،، دپاره به دوه څنګ په څنګ ټکي ,,ي،، ليکلے شي ـ لکه سړي ، زمري وغيره ـ

دا فيصله د معروفې ,, ي ،، د نوي شکل په باب له ده ـ ددې فيصلې نه وړاندې به معروفه ,, ي ،، هم داسې غونډه ,,ى،، ليکلے شوه ـ د نوې فيصلې مطابق به معروفه ,, ي ،، هر کله چې د کلمې په اخر کښې راځي ـ لاندې به پراته دوه څنګ په څنګ ټکي لګولے شي ـ يعنې داسې ,,ي،، دا معروفه ,, ي ،، هسې هم ډيره زياته استعماليږي ـ واحد ، جمع ، فعل هر څۀ کښې راتلے شي خو اکثر د اسمونو د جمع په وخت کښې په اخر کښې راځي او يو مخصوص علامت يا قاعده هم په دغه لړ کښې داسې ده چې هر چرته د مذکر واحد اسم چې اخر کښې ئې مجهوله ,,ے،، راځي ـ د هغې د جمع په حالت کښې به دا معروفه ي اکثر راځي لکه نرے = نري ، سړے = سړي ، زمرے = زمري غاښے = غاښي ، لوښے = لوښي وغيره ـ

ددې نه سېوا په نورو کلمو کښې هم راځي ـ اوس دا فيصله اوشوه چې څۀ ته معروفه ,, ي ،، وائي د هغې شکل به داسې وي ـ ,, ي ،،

**اتمه فيصله** :

يائي تانيث ,,ی ,, به په اخر کښې د کش سره ليکلے شي - لکه کرسی ،جينی وغيره -

دا ,,ی ,, چې د عامې غونډې ,,ی ,, شکل د ے - خو په اخر کښې ورته يو لکی شانې يعنې کش لګولے شي - ,,ی ,, او په دغه کش سره دا د يائي تانيث شکل د ے دا خالص د تانيث علامت د ے - ددې په اخر کښې دا کش ډيره اسانې پيدا کوي او په اسانه پيژندلے او ليکلے شي -
په پښتو کښې هر هغه اسم چې مؤنث وي او په اخر کښې دا ,,ی ,, راځي نو د کش په سبب به پيژند ے شي - ددې رواج هم د پخوا راسې ؤ خو په انتشار کښې ؤ - چا به ليکله او چا نه - ډير خيال به ئې نۀ شۀ ساتلے - د مؤنث دداسې قسمه اواز کوم چې په جينی ، کرسی کښې د ے هلته به د ی دپاسه همزه لګولے کېدۀ او مشکل به ترې پيدا کېدۀ - اوس د کش ,,ی ,, د مؤنث اسم يو مخصوص علامت وټاکلے شو -
د مثال په ډول ، کرسی ، جينی ، نواکی ، سلګی ، چپلی ، څپلی ، کراچی ، پنډی ، لولی ، پولی ، جولی وغيره -

په دې کښې دا خبره هم د غور وړ ده چې داسې قسمه ځنې مؤنث اسمونه د جمع په حالت کښې هم راځي ـ لکه خانۍ تربوږولۍ ، ښادۍ وغيره ـ خو دا د جمع او واحد کله کله يو رنګ هم لري ـ لکه سپۍ ، سيلۍ ، کرسۍ ، والۍ ، تتکۍ ، تنکۍ ، نالۍ ، ګولۍ ، جالۍ ، تالۍ وغيره ـ

## نهمه فيصله

د فعل دپاره به د مخکښې غونډې د ,, ی ،، دپاسه ,, ء ،، ليکو لکه وخورئ ، وکړئ وغيره ـ

ددې مطلب دا دے چې مونږ سره په يو لحاظ دا ,,ی،، زياته شوه ـ يعنې د ,,ی ،، دپاسه به همزه يواځې په هغه صورت کښې لګوؤ چې د فعل دپاره استعماليږي ـ لکه روټۍ وخورئ ـ د خوړلو نه وخورئ ، وړئ ، لرئ ، کوئ ، ساتئ ، راځئ ـ

د فعل امر يا فعل د نورو حالتونو نه سېوا هم ددې ,,ئ ،، استعمال په پښتو کښې شته ـ ,, ته تلے وې ،، جمع ,,تاسو تلي وئ ،، چې دا هم د کېدلو نه د فعل يو حالت دے ـ

د ,,ی ،، دپاسه همزه د خپل اواز په مناسبت لګي ـ ځئ ، کوئ ، خورئ وغيره کښې چې کوم اواز د ,, ی ،، دے هم ددې دپاره دا تخصيص شوے دے ـ دې نه علاوه ,, تاسو ځوک

يئ،، په دې کښې هم د دوېمې ی دپاسه ,, ء ،، دے ـ واحد ,,ئې،، داسې دے ـ چې ته څوک ئې ـ او بيا د يائې مخصوص دا قسمه اوازونه چې د جمعې حالت ته راځي نو د ,, ی ،، دپاسه به همزه لګي ـ

**لسمه فيصله**

په ضمير متصل او ,, ئې ،، کښې به په ,,ی،، باندې همزه ليکلے شي او مخصوصه ,, ې ،، به ليکلے شي ـ او يا به ,,ی،، ليکلے شي لکه په يئ کښې به يوه ,,ی ،، او دوېمه ,, ی ،، باندې همزه ليکلے شي ـ

ددې مطلب دا دے چې ضمير متصل دپاره چې د ,,ی،، کوم اواز دے ـ هغه به د همزه په ئ او يائې مخصوص يو ځائے ليکلے شي ـ

لکه ,, فلانے ئې راوستو ،، ,, هغه ئې ښکل کړو ،، مياں صيب ئې مشر کړو ،، وغيره ـ

په دې فيصله کښې دې خبرې سره هم اتفاق وشو چې که څوک هم دغه ئې داسې ليکي ,, يې ،، نو هم خېر دے ـ او لکه چې وړاندې ذکر وشو د جمع په حالت کښې چې کوم د دوه

يې کانو استعمال دے ـ هغې کښې به ورومبی ,, ي ،، يائې معروف او په دوېمه همزه لگي ,, يئ ،،

## يووُلسمه فېصله

په داسې ,, ه ،، کښې به لکه زړۀ . ښۀ . بۀ .
تۀ د مخکښې په شان د ,, ه ،، دپاسه ,, ء ،،
ليکو ـ

يعنې زړۀ . ښۀ . څۀ کښې به د ,,ه ،، دپاسه ,,ء ،، وي ـ په افغانستان او سوېلي پښتونخوا کښې به هم دغه رنګ ليکلے شي ـ دا يوه اهمه فېصله ده څکه چې د افغانستان او سوېلي پښتونخوا پرې هم اتفاق راغے ـ

دا هسې خو د ,,ه ،، يو سخت يا لنډ شان اواز دے ـ خو تر ډېره حده د مذکر علامت هم دے ـ اګرچې د ,,ه،، دپاسه ,,ء ،، خالص د تذکير د علامت توګه نۀ دے خو نور ټول هغه اسمونه او صفاتي اسمونه او کلمې به خامخا مذکر وي چې د ,,ه،، دپاسه همزه لري ـ د ,,ه ،، په باره کښې وړاندې فېصلهٔ کښې دا خبره شوې وه چې دا به اوس د مؤنث مخصوص علامت نۀ وي خو بيا هم تر ډېره حده دا د مؤنث اسم جوړولو يوه قاعده ده ـ په عام يا ساده رنګ کښې ,, ه ،، که راځي نو د

مؤنث دپاره ډېره يا اکثر راځي او چې دپاسه پرې ,,ء ، ، وي نو داسې اسم يا کلمه اکثر مذکر وي . لکه

ښه ( مؤنث ) ښهٔ ( مذکر )

د وړه ( مؤنث ) جمع وړې دے

د وړکي ( مذکر ) جمع واړهٔ

پښتنه ( مؤنث ) جمع پښتنې

پښتون ( مذکر ) جمع پښتانهٔ

خو دا باقاعده قاعده نهٔ ده . تر څهٔ حده ده ځکه چې د ,,ه ، ، دپاسه ,, همزه ، ، د خپل مخصوص لنډ اواز دپاره لګي . د تذکير و تانيث د مسئلې نه سېوا هم ډېرې زياتې کلمې هغه دي چې مذکر مؤنث نهٔ دي . خو د ,, ه ، ، دپاسه پرې همزه لګي لکه تهٔ . څهٔ . ښهٔ ، پهٔ ، وغېره .

دې کښې تهٔ د تخاطب داسې کلمه ده چې د مؤنث او مذکر دواړو دپاره راځي .

اوبهٔ ځان ته اواز دے او مؤنث جمع ده خو د اواز له رويه پرې ,,ء ، ، لګی څهٔ او پهٔ کښې د خپل اواز له مخه راځي . زړهٔ ، ترهٔ کښې هم دے . خو بيا هم د اکثر مذکر اسمونه چې جمع شي نو دا اواز ورکوي لکه د سُور نه سرهٔ ، پروت نه پراتهٔ ، د زوړ نه زاړهٔ . پښتون نه پښتانهٔ . ددې نه سېوا ځنې مخصوص د پښتو هغه اسمونه دي چې دا اواز لري لکه راغهٔ ، وابهٔ .

د مصدر ځنې شکلونه هم داسې بدلولے شي ـ د تلل نه تلۀ ، وتل نه واتۀ ـ وهل نه واهۀ ـ کتل نه کاتۀ ـ چې مصدري اسم ته راجع دي نو پښتو کښې ددې ,, ہ ،، چې ,, ء ،، وربانديې وي خپل مخصوص اواز دے او په اسمونو کښې فعلونو کښې هر چرته چې دغه اواز وي کۀ مذکر وي او کۀ مؤنث په دغه رنګ به ليکلے شي ـ

په سوېلي پښتونخوا کښې او افغانستان کښې ددې فېصلو نه وراندې د ,, ء ،، د ليکلو دا رواج عام نۀ ؤ ـ اوس هغوي هم ددې پابند دي چې هم داسې به ئې ليکي ـ

## دولسمه فېصله

,, ګ ،، به په کونډه ليکلے شي

په قطبي پښتونخوا کښې خو د پخوا راسې ,,ګ،، په کونډه ليکلے شو ـ ولې په افغانستان کښې به د فارسۍ ,,گ،، په شان ليکلے کېدۀ ـ نو هر کله چې د فارسۍ او هندۍ ټول داسې توري مونږ په کونډه ليکو لکه : ټ ټ ـ ډ ډ ـ ړ ړ وغېره ـ نو يو پکښې ,, ګ ،، هم دے ـ اوس به دا په پښتو هر چرته په کونډه ليکلے شي، هم افغانستان او هم سوېلي پښتونخوا کښې ـ

## ديارلسمه فيصله

کښي، کښېښناستل. نخښنه ، بخښل او داسې
نور ټکي به هم دغه رنګ ليکلے شي۔

دا هم متفقه فيصله ده۔ ,, کښي ،، چې خټک او ځنې
نور قبائل ورته کشي وائي ۔ داسې د خټکو او نورو ځينو قبيلو
هغه کلمې چې په ,, ش ،، ليکلے او وئيلے شي ۔او په ځنې نورو
لهجو کښې ددغه ,,ش ،، اواز په ,, خ ،، ويستلے شي ۔نو دا
يوه زړه پخوانۍ فيصله ده چې د ,, ش ،، او ,, خ ،، فرق دپاره
به د پښتو مخصوص توری ,, ښ ،، ليکو ۔ ,, ښ ،، د پښتو د
ځينو قبيلو يو مخصوص اواز هم دے ۔چې اکثر ئې د غرۀ
مومند وائي ۔خو د خټک او يوسفزۍ لهجې يا د Soft او Hard
لهجې تر مېنځه چې د ش او خ کوم اختلاف دے ، د هغې د
اتفاق راوستو دپاره به دا ,, ښ ،، هلته ليکلے شي ۔چې يو خوا
,,ش،، وي او بل خوا ,, خ،، وي ۔کوم کلمات چې د نرمې
لهجې خلق په ,, ش ،، ادا کوي او هم دغه کلمې د نورو قبيلو
په لهجو کښې په ,, خ ،، ادا کېږي نو داسې به نۀ وي چې د چا
ځنګه خوښه وي يا څنګه ئې وائي هغسې دې ليکي ۔داسې

کلمې به نهٔ په ش ليکلے شي او نهٔ په ,, خ ،، بلکې دا به په ,,ښ،، ليکلے کېږي -

د مثال په طور کښې کښېناستل ، نخښه ، غوښه ، غوښتل ، وغيره د نرمې لهجې خلق کشي ، کشېناستل ، نخشه ، غوشه او غوشتل وائي -او د نورو قبيلو خلق ئې کې کېناستل ، نخه ، غوخه او غوختل وائي - داسې نو بلا کلمې دي چې دا اختلاف لري -خو ددې دپاره به د ,, ښ،، دا درېمګړے حرف استعمالېږي او دواړه لهجې به ئې وئيلے شي -

ددې نه وړاندې په کابل افغانستان کښې اوس اوس دا رواج شروع شوے ؤ -چې ,, کښې ،، به ئې کې ليکله -او داسې نورې د ښ کلمې به ئې نظر انداز کولې -هغوي هم اوس ددې پابند شول او هغه رنګه به ئې ليکي ځنګه چې دلته ليکلے کېږي -

## څوارلسمه فېصله

,, معدوله واو به د ټکو نه نهٔ شي غورزولے
لکه خولهٔ ، خوارهٔ ، ګونه ، غوندې وغېره ،،

ددې فېصلې نه وړاندې د داسې ټکو پحقله پښتو املا کښې انتشار ؤ -چې د چا به ځنګه خوښه وه هغسې به ئې ليکله -معدوله واو هغې ,, واو ،، ته وائي چې په ليکلو کښې راځي

خو په وېنا کښې نۀ راځي ـ لکه تنخوا ، خوا مخوا ، زکوٰة ، خولۀ ، خوارۀ ، غوندې او د ځنې پښتو لهجو کښې لوستل وغېره ـ په اواز کښې یا وېنا کښې عام طور دا تکي داسې راځي ـ تنخا ، خامخا ، زکات ، خلۀ ، خارۀ ، غندې ، لُستل وغېره ـ نو هر کله چې د وېنا سره سره د تکي د ليکلو هم خپل يو معنوي شناخت وي ـ ددې نه سېوا ادائيګي ئې هم په بيلو بيلو لهجو کښې جدا جدا وي نو دا فېصله وشوه چې معدوله واو به په ليکلو کښې خوا مخوا ليکلے شي او د کلمې نه به غورزولے نۀ شي ـ

په دې کښې يوه اهمه خبره دا ده چې معدوله يواځې د ,,و ،، دپاره اکثر راغلې اصطلاح ده ـ په عربی کښې اکثر دا ,,و ،، په مخصوصو صورتونو کښې راځي ـ خو ددې اطلاق د نورو ژبو په ډېرو داسې کلمو کېدے شي چې د تلفظ دغه صورت لري ـ په وړاندې ذکر شوو مثالونو کښې يو مثال مونږ د يوې مخصوصې لهجې ورکړے دے ـ لُستل ـ دا په اصل کښې لوستل دے ـ يعنې په ډېرو لهجو کښې په دې کښې د معدوله حېثيت نۀ لري ـ خو ځنو لهجو کښې شته ـ او هغوي ئې په پېش تلفظ کوي ـ دلته ,, و ،، په وېنا کښې نۀ راځي او معدوله دے ـ خو ليکل ئې پکار دي ـ داسې مثالونه د ځنې نورو تورو هم شته چې په وېنا کښې نۀ راځي خو په ليکلو

کښې راځي او معنیٰ ئې هم هله مکمله شي چې په لیکلو کښې صحیح ولیکلے شي۔

## پینځلسمه فیصله

هغه ټکي یا کلمې چې د عربۍ او فارسۍ نه د پېش په حالت کښې راغلي دي ۔ په پېش به لیکلے شي ۔ یعنې پخپل رنګ کښې لکه ګل ، بلبل ، هغه پښتو کلمې چې پېش لري هغه به مجهوله ,, و ،، لیکلے شي ۔ پوښتنه ، مور ، نور وغیره۔

ددې فیصلې په رڼا کښې به یواځې داسې ټکي چې د عربۍ او فارسۍ نه د پېش په حالت کښې پښتو ته راغلي دي ۔ هغه به په پېش لیکلے شي ۔ لکه ګُل ، بُلبل د فارسۍ ټکي دي ۔ بالکل یا ګُل وغیره چې ددغه ژبو ټکي دي هم داسې به لیکلے شي د پښتو چې کوم خپل اصل کلمې دي هغوي کښې به مجهول واو لګولے شي ۔ د پښتو مجهول واو په یو لحاظ د پښتو مخصوص واو هم دے ۔ یعنې ددې واو چې په پښتو کښې کوم اواز دے هغه یواځې پښتو کښې دے ۔ چې د اردو او فارسۍ ,,و ،، ددې قسمه واو لږ جدا اواز لري ۔ اګرچې ددې واو اواز د پېش سره نزدې اواز لري خو د پېش اواز نۀ دے ۔ د پښتو د

مجهول واو مخصوص اواز دے ـ لکه تور ، نور ، مور ، سور ، خور وغیره کښې دا اواز دے ـ دا که یواځې په پېښ ولیکلے شي هغه به غلط وي ـ لکه د تور په ځاے تُر ، د نور په ځاے نُر ، د مور په ځاے مُر ، د خور په ځاے خُر وغیره ـ دا د مخصوص یا مجهول واو اواز په پوښتنه ، غوښتنه ، ګوته وغیره کښې هم دے او داسې ډېر نور تکي دي چې دا اواز پکښې راځي ـ دلته دا خبره هم د یاد ساتلو ده چې خالص د پښتو هغه تکي چې د پېښ سره نزدې اواز لري ـ اکثر بدلولے شي ـ لکه هُم ، دا هم چرته ام دے ـ یوم هم راځي ـ چې فطري پښتو ده ـ لکه ,,یوه خبره دا هم ده ،، په ځاے وئیلے شي چې ,,یوه خبره دام ده،، نو په اصل کښې هم په پېښ وئیل پښتو کښې عام نۀ دي ـ بلکې هم زیات وئیلے کېږي ـ یواځې د پېښورۍ پښتو په لهجه کښې د هندکو په اختلاط په پېښ وئیلے کېږي او دغه مثال د څنو نورو تکو هم دے ـ دې سره دا وضاحت هم ضروري دے چې اکثر تکي یا کلمې چې د اردو ژبې د اختلاط د وجې ئې د پېښ رواج موندلے دے او کلمې خالصې د پښتو دي هغه به په خپل اصلي رنګ کښې لیکلے شي ـ لکه پښتو ، پښتون ، پښتنه وغیره چې ,,پ،، زور لري ـ "Pakhto" په پېښورۍ لهجه کښې په پېښ وئیلے شي او په نورو قبیلو کښې چې دغه پېښ غلط رواج موندلے دے نو هغوي ئې د خپل فطرت مطابق په مخصوص د پښتو مجهول واو تلفظ کوي ـ کۀ په

غور واوربدے شي نو داسې خلق ورته پوښتون او پوښتو وائي
ځکه نو دا خيال ساتل ضروري دي چې دا دې په زور وئيلے او
ليکلے شي ، چې ژبه صفا پاتې شي۔

## شپاړسمه فېصله

معروف واو به د کلمو نه نۀ غورزولے کېږي
او دپاسه به پېش ورکولے شي لکه نُور ،
سُور وغېره۔

دا فېصله واضحه ده ، خو دا ضرورت به وي چې دداسې کلمو
لکه نُور ، سُور ، ضرُور کښې به معروف واو وي او واو دپاسه
به پېش لګولے شي ۔چې د مجهول واو نه پرې مختلف ښکاري
يعنې په کومَه کلمه چې د واو دپاسه پېش رانۀ شي نو غلط
فهمي ترې پېدا کېدے شي چې دا جوړ مجهول واو دے او
پېش چې پرې دپاسه اولګي نو لازماً به معروف واو وي او اواز
به ئې هم د معروف واو وي کوم چې وغېره کښې يا نُور کښې
دے۔

**اوولسمه فیصله :**

د پښتو مخصوص توري ځ ، څ ، ښ ، ړ به
هم د غسې لیکلے شي۔

دا اخري فیصله ده او اهمه ده ۔ ددې نه وړاندې به اکثر داسې کېدهٔ چې ځ چې اواز ئې د انګرېزي TS سره نزدې دے او پښتو کښې ,, ز ،، ته هم نزدې شانې اواز لري ۔ یا د ځنې لهجو خلق ئې نهٔ شي ادا کولے او اکثر هغه کلمې چې د ,,ځ ،، تورے لري اکثر ئې لیکي هم په ,, ز ،، او د ,, ځ ،، تلفظ هم د ,, ز ،، په شان کوي ۔ یا به په لیکلو کښې تېروتل ۔

په اصل کښې ,,ځ ،، د پښتو د یو مخصوص اواز علامت دے ۔ د ا ، ب ، ت په ترتیب کښې د ,, ج ،، نه پس راځي ۔ د ,, ج ،، او ,, ز ،، تر مېنځه داسې اواز لري ۔ چې ژبه پرې د غاښونو سره لګي ۔ په پښتو کښې ددې خپل مخصوص اواز دے او اکثر داسې هم شوي دي ۔ چې کوم ټکي د فارسۍ او هندۍ نه پښتو ته راغلي دي او اصل ئې ,, ج ،، دے د هغې اواز په پښتو کښې د پښتو د مزاج له مخه اکثر په ,,ځ،، بدل شوے دے یا بدلېږي ۔ لکه جنګل نه ځنګل ، جوان نه ځوان ، جائے نه ځاے وغېره ۔ خو ددې نه سبوا د پښتو خپل د ېر ټکي

هم په دې اواز شته ـ پښتو کښې د ,,ج ،، تورے هم د پښتو خپل اواز دے ـ د فارسی هندی يا عربی ډېر ټکي هم خالص په ج وئيلے کېږي او د پښتو خپل کلمات هم په ج شته او داسې ټکي به په ,, ج ،، ليکلے هم شي او وئيلے هم ـ لکه جولا ، جامې ، ( ژامې نا ) ( کپړې ) جمرود ، جمامه وغېره ـ

خو د ,, ځ ،، خپل مخصوص اواز دے ـ هغه ټکي چې د ,,ځ ،، دي هغه به په ,, ځ ،، ليکلے شي ـ په ,, ز ،، يا ,, ذ ،، ليکل به غلط وي ـ چونکې دا ,,ځ ،، د ج سره نزدې دے او د پرديو ژبو هغه ټکي چې د ,, ج ،، نه پښتو کښې ,, ځ ،، شوي دي نو ځکه ئې د حروف تهجي په ترتيب کښې به د ج نه پس ليکلے شي ـ

بله خبره دا ده چې د پښتنو ځنې خپلې قبيلې هم په دې کلمو کښې د تلفظ اختلاف لري ـ او د ,, ځ ،، تورے د دغه اختلاف تر مېنځه يو اتفاق هم راولي ـ هغه داسې چې د مروتو او ګنډه پور قبيلې چې کوم کلمات په ج ادا کوي هم هغه کلمې د يوسفزيو يا نورو قبيلو خلق په ,,ز ،، تلفظ کوي ـ د دې دواړو د اختلاف تر مېنځه د ,, ځ ،، تورے دے چې هم ,, ج ،، ته نزدې دے او هم ,, ز ،، ته خو زيات اهم په دې دے چې داسې کلمې نهٔ په ج دي او نهٔ په ,, ز ،، بلکې په ,,ځ ،، دي ـ لکه مروت او ګنډه پور چې جنې ، جوان ، جنګل وغېره وائي ـ نو د يوسفزيو په اواز کښې زنې ، زوان او زنګل وئيلے کېږي ـ

حالانکه دا ځنې ، ځوان ، ځنګل دے او شناخت ئې هم د دوارو دپاره اسان دے او ليکل لوستل ئې هم دوارو ته اسان دي - دا د ژبې فرق دے - ځلا ، ځلان ، ځلنده وغيره - د پښتو تکي کڅ د مروتو په ژبه جلا ، جلان ، جلده راځي يا د نورو قبيلو په ژبه زلا ، زلان يا زلنده راځي نو د عيب خبره نۀ ده خو اصل کښې دا تکي د پښتو د مخصوص اواز په ځ دي - او بايد چې په مشق او پريکټس ئې هم دواړه لهجې خپل هم کړے شي او د ادا کولو طريقه هم خپله کړي -

د ,, ځ ،، نه پس بل مخصوص تورے ,, څ ،، دے - دا هم د ځ په شان د پښتو خپل مخصوص اواز دے - چې نۀ خو ,,چ،، ده او نۀ ,,ث،، يا ,,س،، - د پښتو خپل ډير کلمات په دې ,, څ ،، وئيلے شي - خو د ,, ځ ،، په شان د مروتو قبيلې يې نۀ شي ادا کولے نو د ,, چ ،، په اواز هغه تکي وائي کوم چې په ,, څ ،، لکه هغوي څۀ ته چۀ وائي - څوک ته چوک وغيره او هم دا کلمې د يوسفزيو په لهجه کښې اکثر په س ادا کولے شي چې غالباً ورو ورو ئې د ژبې نه د ,, څ ،، مخصوص اواز هير کړے دے - لکه څوک ته سوک څۀ ته سۀ - څرنګه ته سرنګه وغيره وائي - حالانکه دا ,, څ ،، اواز لري - او د پښتنو په اکثريتي قبيلو کښې هم داسې ادا کولے شي -

بله اهمه خبره دا هم ده چې کوم تکي د فارسي هندي ژبو کښې په ,, چ ،، دي - او هغه پښتو ته راغلي دي - نو اکثر

ئې اواز په ,, خ ،، بدل شوے دے لکه چادر ، څادر ، چارپائے ، څاروے ، چپر ، څپر وغېره ـ نو دا هم د مروتو او د یوسفزیو تر مېنځه د چ او ,, س ،، په اختلاف کښې اتفاق راولي، چې څادر ، څوک ، څپر وغېره به چادر ، چوک ، چپر هم نۀ شي وئیلے او لیکلے ـ داسې به سادر ، سوک ، سپر وغېره هم نۀ شي لیکلے ـ دا به د پښتو د خپل شناخت دپاره په ,, څ ،، لیکلے شي چې د پښتو مخصوص توری دے ـ ولې ورو ورو د ځنې قبیلو د لهجې نه اوړېدلے دے ـ باید چې د خپل مخصوص اواز مشق ئې اوکړے شي یا کم نه کم د لیکلو تر حده ئې خیال وساتلے شي ـ کۀ تلفظ ئې د خپلې لهجې مطابق هم کوي نو خېر دے ـ

بل مخصوص تورے د ,, ښ ،، دے ـ ددې ذکر وړاندې هم راغلے دے ـ دا هم د پښتو مخصوص اواز دے ـ خو د نرمې او سختې لهجې ترمېنځه اختلاف کښې د اتفاق علامت هم دے ـ هغه داسې چې خټک یا قندهاري لهجه کښې کومې کلمې په ,,ش،، ادا کولے شي هغه کلمې اکثر په یوسفزۍ لهجه کښې په ,, خ ،، وئیلے کېږي ـ نو هر کله چې د یوسفزیو په لهجه کښې ,,ش،، هم شته او ,, خ ،، هم او داسې قندهاري یا خټک لهجه کښې هم ,,ش،، شته او هم ,, خ ،، خو اکثر کلمې داسې هم دي چې د یوې لهجې خلق ئې په ش تلفظ کوي او د بلې لهجې وسېدونکي ئې په ,,خ ،، کوي ـ نو داسې کلمې

به په ,,ښ،، لیکلے شي - چې دواړه لهجې ئې د خپلې لهجې مطابق وئیلے شي - لکه پښتو ، پښتون چې پشتو او پختو به نۀ شي لیکلے بلکې پښتو او پښتون به وي - یعنې په ,, ښ ،، به وي - داسې خۀ او شۀ - اوخ اُوش ، پشه او پخه ، روشان او روخان وغیره به ښۀ، اوښ ، پښه ، روښان وي - چې دواړه لهجې ئې هم شناخت په اسانه کولے شي او هم لیکلے او وئیلے شي او په لیک کښې به ئې اتفاق او وحدت هم وي -

بله د پښتو مخصوص توری ,,ږ ،، دے - دا یو ضروري تورے دے دا هم د دوؤ لهجو تر مینځه د اتحاد علامت دے - ځکه چې قندهاري یا خټک لهجه کښې چې کوم کلمات په ,, ژ ،، تلفظ کیږي هغه په یوسفزۍ لهجه کښې په ګ تلفظ کولے شي - لکه ژیره ، ګیره ، ژمنځ ، ګمنز ، ژلۍ ، ګلۍ ، تیژه ، تیګه وغیره - نو ددې لهجو تر مینځه به داسې ټکي په ,,ږ،، لیکلے شي - لکه ږیره ، ږمنځ ، ږلۍ ، تیږه ، وغیره ځکه چې داسې به دواړه لهجې په اسانه د اصل کلمې شناخت کولے شي -

ددې سره دا خبره هم ضروري ده چې ځنې لهجې د ,,ژ،، په ځاے د ,,ج،، اواز هم اوباسي - ,,ج،، پښتو کښې خپل تورے او خپل کلمات ئې دي - داسې د ,,ګ،، هم خپل کلمات دي چې په هره لهجه کښې شته نو یواځې د ژ او ګ تر مینځه ,,ږ ،، ده او د ,,ژ،، خپل اواز هم په هره لهجه کښې

شته ـ هغه کلمې چې په اصل کښې په ,,ژ ،، دي او ځنې لهجې ئې په ,,ج ،، تلفظ کوي ـ هغوي به ئې په ,ج، نۀ ليکي ـ ځکه چې داسې به د تکي او د پښتو خپل شناخت او وحدت ته نقصان رسي ـ لکه ژبه به ژبه وي جبه ليکل نۀ دي پکار ـ ژوند په ,,ژ ،، دے ـ جوند يا جُند ليکل نۀ دي پکار ـ وريژې ـ وريجې ليکل نۀ دي پکار ـ ځنې داسې نورې کلمې دي او خالص د پښتو په ,,ژ ،، ليکل پکار دي چې , ژ ، د پښتو خپل مخصوص اواز دے او په يوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لهجو کښې شته ـ کۀ د چا په لهجه کښې ددې ځاے ,ج، هم وي ـ نو د هغوي شمېر ډېر کم دے ـ بايد چې د پښتو په وحدت پسې لاړ شي ـ او د ليکلو تر حده کم نه کم د غه کلمې په ,, ژ ،، ليکي ـ او ,, ږ ،، به يواځې د دوؤ غټو لهجو د ,,ژ ،، او ګ د اختلاف تر مېنځه د اتحاد د علامت په طور ليکلے شي ـ